

# پښتو پښويه (گرامر)

# PASHTO GRAMMAR

دويم لاسوهلی ازميښتي چاپ


پوهندوی دوکتور مجاور احمد زيار

Dr. M. A. Zyar





ادب پوهنځی

د ۱۳۵۷ وری

نیو لیك (فهرست)

| سرلیك | مخ |
|---|---|
| یادښت | الف |
| پښتویه (گرامر) | ۱ |
| لومړۍ برخه ــ غږ پوهه (فونو لوژي): | ۱ |
| دویمه برخه ــ گړ پوهه (مور فولوژي): | ٦ |
| نوم گړ پوهه | ٦ |
| نوزي (جنس) | ۷ |
| پیر (حالت) | ۱۰ |
| ناوښتونی نومونه | ۱۲ |
| شیز نوم (اسم) | ۱۳ |
| ستاینوم (صفت) | ۱٤ |
| شمیرنوم (عدد اسم) | ۱٦ |
| نومځري (ضمیر) | ۱۸ |
| ځانگړي نومځري (شخص ضمیرونه) | ۱۸ |
| تولنو مځري (ملکی ضمیرونه) | ۱۹ |
| نغوتنومځري (اشاري ضمیرونه) | ۱۹ |
| پوښتنو مځري (استفهامی ضمیرونه) | ۲۰ |
| وییکو مځري (اداتی ضمیرونه) | ۲۱ |
| اړیکو مځري (ارتباطی ضمیرونه) | ۲۲ |
| غبرگون نومځري (انعکاس ضمیرونه) | ۲٤ |
| ناټیکو مځري (ابهامی ضمیرونه) | ۲٤ |



| سرليك | مخ |
|---|---|

| سرلیـــــک | مـــــخ |
| --- | --- |





| سرليــــک | مــــخ |
|---|---|

سرلیک | مخ
--- | ---

## یادښت

دنوي اوزاړه ترمنځ یوه نه شلیدونکی شخړه یو دیالکتیکی قانون دی • هر زوړ شیز اوېدیده په خپل ځان کی دننه دیوه ورپسی نوي اړ پیچ (ضد) زړي روزي او په هغه‌دې دود اوده‌ی د وګړنی تولنی بشپړتیا ېی بهیر مخ پروړ اندي دروسی اولـــه دي سره یی انداوبوهه • په دي توګه له هغال تیرېدنی اوځانګړو ځانی او جهانی اړونو سره سم بشري پوهنه تل بدلون اونوي ګیدون موسی اوهمدغه بدلون اونوي‌کیدون یـــی بشپړتیاېی تګلوري ورسیخوي •

زموږ په وروسته پاتی تولنه کی دنورو بشري پوهنو په لړ کی ژبپوهنه هم شـــوي دودیدونکی ده او زموږ له تولنیزو اړونو سره سم یی یو رنګ لاسم دود ده وي موندلـــی چی په نوره نړۍ کی هغه بیا دوخته زوړ وي • که څه هم لږ ترلږه شل کاله پوره کېدونکی دي چی نوي ژبپوهنی دادبپوهنځی له لاري زموږ هیوادته سررادننه کړي خوبیا یـــی‌هم نه یواځـــی دزړي دودیزي‌ژبپوهنی‌اوبنوبی ځاي نه دي نیولی چی لاکوڅ یی ثري سـر هومره هم نه دي هسك کړي •

دعبدالاحد یاري دنوي ژبپوهنی څولوستونه اولیکنی لادشاګردانو مغزو ته سمی نه وي رسیدلی چی درښتین ژبنودنی بیاتول افغانستان نیولی وکه له الهامه تیرشو د پښتو ځانګی پازوال استاد شاکر دنوي ژبپوهنی دپیښاوو په توګه نه دومره اکادمیکـه زده کړه اوسمبالتیا درلوده اونه یی ورسره لږه کی زړ ورتیا چی هغه زړه ژبنودنـــه لږ ترلږه له پوهنځی څخه وباسی • ده چی دژبپوهنی مو° سسن او پښتو ځانګی دژبنیو خیړنو او ښوونی بشپړ مونو بول یی په لاس کی وله (( نوئیم وخه ته وایی ـ موږفهم وخـه ته وایی؟ )) پرته نه نور څه زده وو او نه یی ترهغه زیات څه وړ اندي کړاي هـــــول •

نو په دې توګه به ترې پخپله د پښتو ژبپوهنې یا پښتو ښوونې په باب څه هیله شوې وای .
د تېرې نوې ژبپوهنې (د پښتو ټولنې د ۱۳۴۴ خپرونې) او د پالوال نوي مصدر (د ادبپوهنځي
د ۱۳۵۰ خپرونې) بیا هم زاړه غوزونه یوڅه وپسکول او دا یې لږ تر لږه وښووله چې نوې
ژبپوهنه یا ښوونه څه مانا !

ما د ژبپوهنې د یوه نوي زده کوونکي او پښتو ګړ د ود څېړونکي په توګه د سویس
له زده کړ ونه له بېرته راستېید و سره له زړې ژبپوهنې او زړې ژبښودنې سره یوې مخېزې
نه پخلا کید ونکې سرغړاوې ته راود انګل او خپله لومړۍ دنده مې دا وبلله چې له پښتو څانګې
څخه همدومره د زړې ژبښودنې تخرویلز د یوم لکه کوم کار چې په دري څانګه کې الهام او
نګهت کړی دی او تر خپل مسلکي واک او ومې پورې د نوي ژبپوهنې په رڼاکې د یوې نوې
ښوونځیوالۍ (مکتبي) ښوونې او ژبښوونې بنسټ هومره کېږدم .

زه دا باټي نه وهم چې دغه ښوونه په تیوریک ډول د کوم ډېر تازه او لوکس
ژبوهنیز ښوونځي (لکه ترانسفور ماسیونل – ژنراتیف ګرامر) ښکارندوی ګڼلای شي او
سل په سلو کې د پښتو یو بشپړ سپړیز (تشریحي) ګرامر او س خودا په ډاګه ویلای شم
چې ترودیز نورماتیف ګرامر هم نه دی . دا چې لیکې او علمي پښتو لامنځ ته نه ده راغلې
او هر چا خپله کلیواله او ځانګړې پښتو رامخکې کړې ده نو کېدای شي ځینو ګوتیوونکو
ته زما دغه ښوونه یو نورماتیف ګرامر وایسي ځکه ما د نورو پرخلاف ځان ته یوا ځینې پښتو
امرلي او غوره کړي ده او د ګرامري د ود ونو (قاعدو) او ټولیو (کټیګوریو) په سپړنه ایستنه
او ویشنه کې مې د ټولو پښتو ګړ د ود ونو د یوې ګډې امرلی (انتخابي) پنهی ارا او معیار په
کار اچولی دی په دې چې د ((پښتو)) ګرامر لیکه او د ((پښتو ګانو)) ګرامر لیکه
سره توپیر لري .

دموخې اومرام له پلوه مازيات دپښتو څانګې دشاګردانو راتلونکې اړتيا په پام کې نيولې ده . هغه داچې دوې په داسې يوې‌نوې پښوې سره پرخپل خپل وار پـــه منځنيو اولوړو ښوونيزو څانګو کې سمدلاسه دزړې ژبښوونې پايته رسيدل اوله دود ه لويدل هومره وښوولاې شې اوبرڅاې يې دنوې ژبښوونې يوه وزمه هومره خپره کړې داسې نوې ژبښوونه چې هم تخنيکې اومتوديکسې نوپوالې لرې اوهم ژبنې نوپوالې . او زماپه ازمېښت ندې لاسوند چې ماولې دغه دوه اړخيز نوپوالې ته پرپووار را ونانګل ، داد يچې پوا‌څې په دې يوه نوپـــوالې له زړې ژبښوونې او پښوې سره مبارزه بياهم نيمګړې وه . د ((حـــرف ياتوري ))ـ((مصدر)) ـ ((فاعل)) او ((مفعول ))غوندې کړغېړنې نومونې چې‌استادېس په ويلو او شاګردان ياشاګردانې يې په اوريدلو شرميزې نور هماغسې له دوبه او موده وتلې بريښې لکه‌پخپله دزړې ژبښودنې کړغېړن دوداو تخنيک .

که څه هم ددې نوې‌غورځنګ دغه دويم اړخ راته داپنځه شپږ کاله دسره کاســه کې اوبه راکړې اودزړې لياري پلوبانو مې دکوټلو لپاره همداپلمه ونيوله خوما هرڅه ديوه ((علمې برې)) په خاطر وزغمل او ډال مې پرڅمکه کښې نښود . همدغه زغم اړتينـــګ هوډ اوويلاړو چې تر برې يې ورسولم او هغه داچې دغه نوې پښوبه مې له ټولو نويو نومونو اوترمونو سره هم شاګردانو وسهلاې شوه او زده کړاې شوه او هم مې دشاګردانو شاګردانو . دادپوهنځې دناپښتو څانګو او ځينو نورو پوهنځيو لپاره له همدغه ګرامر څخه لوستونــه برابر شول او همداسې يې پسې دهيواد نورو لويرو ښوونيزو مرکزونو ته لارپيداکړه اولا پيداکوې يې . دملالې ليسې پښتو څانګې زما له همدغه ګرامر څخه يووتلې لوستليکې کاپې کړې او دهغه ليسې په درسې کتابونو کې يې ورته ځاې ورکړ . بې له دې چې زما لـــه شاګردانو څخه کوم‌يوه هلته ښکارندويې کړې‌وې . له دې ټولو خبرو سره سره زه بياهـــم خپله پښويه يوه بشپړه اوبې ((خو )) نه بولم اونه يې بوللاې شم . هماغسې چې زمـــا

دغه پښتو یه د پوهاند رښتین ترژباړنو د نی نوي د ه او د هغې ځاي ېې ونیو همدغس به په

څا پسی د دوکتور تزي هغه هم زما تر د ي نوي وي اوځاي به يې ونیس ۰ مقصد یوه نوي لاره

هومره مې وایستله اوس نو هر نوي ژبپوهاند او پښتو پیوهاند کولاي شي چې له کـــوم

سرخوږه د نوي ژبپوهنې د هماغه بیخې نوي ښوونځې په رڼا کې د لازیاتی نوي پښتو

ژبپوهنی او پښتو پښوېی په باب تازه نوښتونه او نو چارونه وړ اند ي کړي ۰ نه یوا ځــــې

په ګړ هار بلکې په چار او کړ ن سره زما د دغو ځاي ونیس او په دي توګه د نوي نړ ئ او

نوي پیړ ئ له پوهې او تخنیک سره د پښتو او پښتو په پیژندو ېې او روز د ید نه کې ترمـــا

زیاته ونډ ه واخلی ۰

تل د ې پرتاپوهې باندي د پوهې بـــــري

او برز ړ و باندي د نویو لا سبـــــــري

پوهندوی دوکتور مجاور احمد زیار

نادرشاه مینه د ۱۳۵٦ دکب ۱۵

سید مسافر

# پښتو ګرامر (ګـــــــرامر)

پښتو ګرامر دپښتو ژبې یوه ستره برخه ده چې په دوو برخو ويشل کیږي (تشریحي) دې پــــه ...

ښوونځیو او پوهنتونو کې (کورسو) د پښتو ژبې د معیاري لیکنې ښوونې

لپاره کارول کیږي. په لاندې ډول:

پښتو ګرامر له بېلا بېلو ټولګو او بیلو برخو سره ښودل کیږي، چې ټولو ته

ځینې پښتو ژبې پوهان (تشریحي ګرامر) وايي چې په لاندې توګه

ترسره کیږي:

۱ــ غږ پوهه (فونولوژي).

۲ــ ګړ پوهه (مورفولوژي)

۳ــ غونډله پوهه (سینټکس).

## لومړۍ برخه

## غږ پوهه (PHONOLOGY)

غږپوهه په ټولیز ډول د پښتو ژبې لومړنی ساده توکونه (غږونه) څېړي

او په لاندې ډول په دوو څانګو ويشل کیږي:

۱ــ اواز پوهه (فونیمیکس).

۲ــ سپړنپوهه (فونیتیکس).

اوازپوهـــــه: اواز پوهه د پښتو ژبې ارزښتناک غږونه (اوازونه) ترڅېړنې لاندې نیسي.

اواز: (فونیم) هغه داوريدو وړ سپړل شوی غږ دی چې دغږیزو غړو او ساه په مرسته پېژندل کیږي او

له خولې راوځي. پخپله کومه مانا نلري خو په ويونو (کلمو) کې د مانا توپير پیدا کوي لکه پور او تور

چې دیوه اواز په بدلولو سره د دوه بیلا بیل ویونه دي.

سپړنپوهـــــه: سپړنپوهه د پښتو ژبې ټول غږونه یا سپړنونه که ارزښت ولري یا ونلري یوځای

ترڅېړنې لاندې نیسي د ساري په ډول (د) د پښتو یو ارزښتناک غږ (اواز) دی خو په وین

یاځپه کی له راز راز دریخ (موقعیت) سره بیلابیلی بڼی ځانته غوره کوي . داسی چی وینګ (تلفظ) یی دوی یا څپی په یوه برخه کی زور وروي او په بله کی کمزوري یانیم کمزوري لکه په (دود) کی چی لومړي (د) تر دویم هغه غښتلی ویل کیږي اودویم . بیخی د (ت) وینګ ته نژدي کیږي . نودفونیتیکس له پلوه پرلومړي دویم او ... ( دالونو) ویشو او د فونیمیکس له پلوه یی دهماغه یوانځینی (دال) په توګه پیژنو .

په دې توګه هره ژبه یو ټاکلی شمیر اوازونه لري خو سپڼمونه یی هرڅومره کیداي شی .

دپښتو اوازونه : یوه - یوانځینی - ګڼه لیکی معیاري پښتوټول ۳۶ اوازونه لري چی پرڅلورو ډلوویشل کیږي :

۱- ځپلواك (واول) چی راپیداکیدل یی بی له کوم ستر هوایی بندیز څخه ترسره کیږي او شمیریی اووته رسیږي .

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| زور | a | لکه | سر | sar |
| زورکی | ə | لکه | تره | trə |
| الف | ā | لکه | کار | kār |
| اوږده ي | e | لکه | ادي | ade |
| لنډه ي | i | لکه | ښادي | ṣādi |
| اوږده و | o | لکه | اور | or |
| لنډه و | u | لکه | سور | sur |

۲- بیواك (کنسوننټ) چی له راپیداکید و یاله خولی څخه دراوتوپروخت د ساهوا له بندیز سره مخامخیږي اوشمیریی (۲۷) ته رسی .

| | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|
| ب | (بې | b ) | لكه | بر | bár |
| پ | (پې | p ) | لكه | پور | por |
| ت | (تې | t ) | لكه | تور | tor |
| ټ | (ټې | ṭ ) | لكه | ټول | ṭol |
| ج | (جې | j ) | لكه | جوړ | joṛ |
| ځ | (ځې | ǰ ) | لكه | ځور | ǰwar |
| څ | (څې | c̣ ) | لكه | څار | c̣ar |
| چ | (چې | č ) | لكه | چار | čar |
| خ | (خې | x ) | لكه | خول | xol |
| د | (دې | d ) | لكه | دود | dod |
| ډ | (ډې | ḍ ) | لكه | ډاډ | ḍāḍ |
| ر | (رې | r ) | لكه | زور | zor |
| ړ | (ړې | ṛ ) | لكه | ړوند | ṛund |
| ز | (زې | z ) | لكه | زر | zər |
| ژ | (ژې | ž ) | لكه | ژر | žər |
| ږ | (ږې | ẓ̌ ) | لكه | ږيره | ẓ̌ira |
| س | (سې | s ) | لكه | سم | sam |
| ش | (شې | š ) | لكه | شل | šəl |
| ښ | (ښې | ṣ̌ ) | لكه | ښل (زنانه) | ṣ̌əl |
| غ | (غې | ğ ) | لكه | غرمه | ğarma |
| ك | (كې | k ) | لكه | كر(كشت) | kar |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| گ | (گې g ) | لکه | گر (ظلم) | gar |
| ل | (لې l ) | لکه | لار | lār |
| م | (مې m ) | لکه | موړ | moṛ |
| ن | (نـــ n ) | لکه | نن | nən |
| ڼ | (ڼــ ṇ ) | لکه | بڼ | baṇ |
| هـ | (هې h ) | لکه | هلك | halək |

٣ــ نیمواك(نیم واول ) هغه اوازونه دي چې دخپلواکو او بیواکو دواړو دنده پرځاي کوي یاپه بله وینا که په یوه څپه کې دزړي یاهستی (حرکت) کاروکړي دخپلواك بنســغوره کوي که نه دبیواك . په ترتیب سره لکه په بیل bel اوبیا byā کــس • دنورو خپلوانو ژبوغوندي پښتو هم دوه نیمواکلري :

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| و | ( w ) | لکه | ور | war |
| ي | ( y ) | لکه | یور | yor |

٤ــ غبرگغبزونه( دیفتونگونه ) هغه اوازونه دي چې دخپلواکو اونیمواکو په ملگرتیا منځ ته راځي اولکه پوستوي اوازونه یووارپتــلیز (پیوسته) له خولې راوځي • دیوه غبرگغبز لومړي توك یوخپلواك او دویم توك یې یو نیمواك اوازوي اودا چې پښتو نیمواك اوازونه دوه دي نوبه دې توگه یې یو ډول غبرگغونه په و( w ) جوړیږي اوبل ډول یې په ي( y ) چې ټول شمیریې یوولسوته رسي •

لومړي ــ دي( y ) غبرگغبزونه :

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| نرمه یازوروالـه ي | ay | لکه | سړی | saṛay |
| اي | āy | لکه | ځاي | zāy |
| درنه یازورکې والی ئ | əy | لکه | مړئ | maṛəy |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ڕي | oy | لکه | زوي | zoy |
| ۍ | uy | لکه | بوي | buy |

دويم — د و ( w ) غبرگږونه :

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| او | aw | لکه | لو | law |
| أو | w | لکه | کټو | kaṭəw |
| او | üw | لکه | پړاو | paṛüw |
| او | ow | لکه | اوری | owrəy |
| يو | ow | لکه | ايو (گاه گل) | low |
| يو | iw | لکه | تريو | triw |

څپــــه : څپه ، هجا یاسیلابهغه اواز غونډ (فونيمي گروپ) دي چې يا يو خپلواك وي او یاله يوه خپلواك اويوه یا څو بيواکو څخه جوړوي اويه يو ځايــې يو ول له خولې راوځـي لکه په ( ادوم ) کې چـې د وه زړي (خپلواکه) لري لومړۍ څپه (الف) اود ويمه ( دوم ) ده یاشخوند sxwand چې يوزړي ( a ) لري اوپنځه بيواکه تو يوه او زده څپه گڼـل کيږي • څپه هرو مرو مانا نلري د ساري په توگه کور هم يوه څپه ده او هم يو ويـي ځکه مانا لري مگر ( اـغي ـ زه ) په اغيزه کې دريوارو څپې ځانته جلا جلا مانا وي نلري •

خج يافشار( اکسينت ) : خج هغه چار(عمليه) ته وايي چې يو ژبنيــــز توکونو په لړ کې يو توك په زور او شدت سره وويل شي •

په دي توگه خج په دروډولو ويشل کيږي :

غونډاله ييـز( جملوي ) خج — ويېز (لغوي ) خج او څپيز (هجا يـــي )

خج لکه په ( زه پوهنتون ته ځم zə pohantuṇ ta ʒəm. )کې يوغونــډ

له ييز خج راغلی او هغه هم پر( u ) اويه يوه وخت کې ويېز خج هم دي ځکه د

غونډلی دنوروویینو په ترڅ کی یواځی د (پوهنتون) ویی خج اخیستی او هم ښپیزخج دی

ځکه دپوهنتون د دری گونو ښپو په ترڅ کی یواځی یوی ښپی

خج تر لاسه کری دی •

## دویمــــه برخــــه

## گړ پوهه (صرف Morphology )

گړ پوهه‌د پښتو هغه برخه ده چی دگړ ونو (مور فیمونو ) له رغاونی اوړ ون (گردان)

او دهغو له ټیلونو ( ټولونو ) سره کار لری •

گــــــړ : گړ هغه کوچنی مانیز ژبنی توك یا مانیز یوون (واحد ) دی چی که وشنل شی

اوازونه تری لاسته راځی اوپه دې توگه خپله مانا له لاسه ورکوی •

ځانگــــــی : گړ پوهه دگړ ونو د ټولونو له مخــــی په دوو ځانگو وشل کیزی : یوه

داوړید زنیو (گردانید ونکو )گړ ونو ځانگه اوبله دناوړید و نیو گړ و نو ځانگه • داوړید ونیوگړ ونو ځانگه بیا دوی برخی را اخلـــی :

١ــ نوم گړ پوهـــه •
٢ــ کړ گړ پوهه •

نوم گړ پوهه :

په نوم گړ پوهه کی د نومونو ټولونه او دهغه اوړ ونونه (گردانونه) څیړل کیزی •

نـــوم : هغه ویی دی چی پی له زمانی اړیکی (دکړ په توپیر ) د راز راز شیزونو

او ښکارند و (پدیدو ) څرگند ونه کوی لکه تیزه ، لرگی ، سری ، سریتوب ، ښایست ، روغ ، روغتیا ،

روغوالی ، زه ، ته ، دی ، یو ، دوه • • • •

دنومونو ټولنــــــد :

نومونه پرڅلورو ټلو (گروپونو) وشل کیزی :

١ــ شیزنومونه ( اسما ) •

۲ــ ستاینو مونه ( صفات ) ◦

۳ــ شمیرنومونه ( اعداد ) ◦

۴ــ نومځیري ( ضمایر ) ◦

دنوم اوړون اړخونه :

نومونه په ډولیز ډول د دروو اړخو ( وجوهو ) له مخې اوړون موي لکه نوزي ،

ګڼه ، پیر ، خو خلورم ډول ( نومځیري ) یې پرهغو سربیره دیوه بل اړخ ( وګړي ) له مخې

هم ګردانیږي ◦

۱ــ نوزي ( جنس ) چې نوم نرینه دي لکه ګیدړ ، سور اویا ښځینه لکه ګیدړه ــ سره ◦

دنرینه نوم نښې : دا وروسته نومونه زیاتره نرینه دي :

۱ــ چې وروستی اواز ( فونیم ) یې بیواک ( کنسوننت ) وي لکه : کور ، ختیځ ، هلک ،

غټ ، زیاړ ، هیواد ، غورځنګ ، اړمیز ، الس ، پټ ، چرګ ، بیدودیه ( مستثنی ) زیاتره دخپلوانو

نومونه لکه : خور ، مور ، ترور ، نږور ، ندرور ، ورندار ، تندار ؛ یاهغه ښځینه نومونه چې

په رښتیا کې زیاتره خپل پای خپلواک غورځوي لکه ببتن ، څنګل ، لار ، ترخه ، همداراز ډول ( نوزي ) اومت ( متهی ) ◦

۲ــ له زورکی والی ی ( ی ) او ... پرته هر نوم چې په غبرګغږ ( دیفتونګ )

پای ته رسیدلی وي لکه سړي ــ لرګی ــ ځای ــ بډای ــ زوي ــ لړي ــ شارندوي ــ پیژندوي

( مشهور ) بوي ــ خوي ــ کډو ــ لو ــ جړاو ــ پړاو ــ کړاو ــ نیاو ــ لیو ــ تیو ◦

۳ــ هغه نومونه چې په زورکي پای کیږي لکه تره ــ پسه ــ لینوه ــ وراره ــ زړه ◦

بیدوده لکه : خوله ــ دیاله ــ تراه ◦

۴ــ هغه نومونه چې په لنډو ( u ) پای ته رسي لکه چاکو ، پټو ، یابو اردو

( عسکري ) ، لاټو ، لاهو ، کاهو ، ماکو ، پټو ، پیښاور ( مقلد ) ، ساندو ( باجه ) ،

ساهو ( ازاد ) ، بازو ◦

دښځینه نوم نښې : دا وروسته نومونه زیاتره ښځینه نښې ( پایلی ) لري :

۱ــ له زورکی اولنډې ( و ) پرته هغه نومونه چې په خپلواکو ( واولو ) پای ته رسي

لکه ادې ، ناوې ، خسوزه ، ولې ، ښادې ، وروري ، ودانې ، ورانې ، ښه ، پزه ، ښځه ◦

رنا ، بوربنښا ، بیدیا ، لوړ تیا ، نخا ، خلا ، ورا ، بلا ، ژړا ، خندا ، غلا ، ملا (کمر ) ، شا ، ویسا ، پښتیانا ، اریانا ، پیشرو ، زانګو ، درخو ، بیو ، پیلبو ( بوربنښا ) ، شادو ، بیزو ۰۰۰

بیدرونه لکه: دادا (پلار) ، ماما ، کاکا ، لالا ، بیرا ، بډا (مقابل ) ، بومیا (پیشرا) ، هوسا ، جلیا ، ملیا (باغوان) ، کونا ، رونډا ، سبا ، میلمه ، کروپه ، غوبه ، لریه ۰۰۰

۲ــ د ساده په غبرګغږ پای کیدونکی نومونه ، لکه : کنډو (کتره) ۰

۳ــ په زورکی والی ئ (غبرګغږ ) پایکیدونکی نومونه ، لکه : لوړی ، هوسۍ ، کبلی (غزال) ، شرۍ ، مرۍ ، اړۍ (کور دخورد ) ، ړن (کلک دندہ) ، متیس ، ګدۍ ( فاحشه ، اربکه مسند ، قنجوغه) ، نجلۍ ، مخۍ (بدلګري نجلۍ ، معما ، چیستان) ، نتکۍ ، شپیلۍ ۰۰۰۰۰

دګنیـــــــی(عدد ) نښـــــی :

الف ــ دنرینه ګڼـی (جمع ) نښی په داوروسته ډول دي :

۱ــ ان ۰ زیاتره هغه نرینه نومونه ډیرګړي (جمع ) کوي چی بیواکپای اوساوالاوي ۰ لکه هلکان ، پړانګان ، مچان ، کبان ، چنګاښان ۰

ځینی خپلواکپای نرینه نومونه لکه لیوان ، تیتوان ، اسان (اسونه) ، پسان (پسونه) ۰۰۰

۲ــ ونه ، زیاتره بیواکپای بی سا نرینه نومونه ډیرګړي کوي ، لکه سیندونه ، ډنډونه ، میزونه ، کتابونه ، لاسونه ، نسونه ، سرونه ، پلونه ، خوبونه ، بوبونه ، توبونه ، وربوبونه ۰

ځینی خپلواکپای نرینه نومونه لکه ترونه ، وریرونه ، زړونه ، ځینی ساوالا بیواکپای نرینه نومونه لکه پلرونه ۰

۳ــ زورکی ، ځینی لنډ خپیز اوخپلواک ( وای ) منځی نرینه نومونه ډیرګړي کوي ، لکه : خره ، غله ، دښمنه ، مله ، مړه ، وازره ، پښتانه ، شپانه ، خوازه ، تراخه (ترخه) ، زره (ززه) ، ماغزه ۰

٤ــ لنډ ه ي ( ِ ) ، هغه نومونه ډیرګړي کوي چی په نرمه ی ay پای وي ۰ لکه نرګی ، سړي ، خلمی ، نښتی ، غویی ، ویی ، توکی ، پیاوړي ، روي ، ګوي (غانبی ) ، غانبی ۰

د دي روستاري پلگړ ان اوونه هم لږ و ډيرراځي لکه ځلميان غوبان ويونه

خرييونه ۰

۵ـ يا ن چې دان بلگړ دي او ځينې غبرګغږياي او ځپلواکپاي نرينه نومونه ډيرگړي

کوي لکه ميرزايان، اشنايان ، سويان ۰۰۰۰

٦ـ گا ن چې دا ن يو بل بلگسر دي او ځينې ځپلواکپاي نرينه نومونه ډيرگړي

کوي لکه سنډاګان ، لاټوګان ، کدوګان ، ټټوګان ، ماماګان ، کاکاګان ، لالاګان ، پير اګا ن ،

پلاګان ( پلا ) ، بوډاګان ۰

بيدوده لکه ميلمانه ، زامن ۰

ب ـ د ښځينه گڼې (جمع )نښې په دې لاندي ډول دي :

۱ـ اوزده ( ې ) ، هغه ښځينه نومونه جمع کوي چې په زوريا زورکې پاي ته رسي ۰

لکه : منې ، پزې ، خولې ، وبالې ، وړانگې ، خانگې ، سانگې (نيزې ) ، پانگې ، ډيوې ،

شړنډې ، سکروټې ، پلې (پښې) ، توکې ټکالې ، غلې ، ملې ، خرې ۰۰۰۰

۲ـ زورکې واله ئ y ـے ، هغه ښځينه نومونه ډيرگړي کوي چې په لنډه ي

پاي ته رسيدلي ري ، لکه ودانئ ، خپلوئ ، ښادئ ، ناروغئ ۰۰۰۰۰

۳ـ وې wo هغه ښځينه نومونه ډيرگړي کوي چې په الف يا اوزده ( و )

پاي ته رسي ، لکه ژړاوې ، خنداوې ، ملاوې ، نخاوې ، زانگووې ، پيلبوې ، ښکالووې ،

پيرزووې ۰

باگړيې گانې هم راځي لکه شاگانې ، نخاگانې ، بريښناگانې ، زانگوگانې ،

پيزوگانې ، همدارازورندارگانې ، نندرورگانې ۰۰۰۰

٤ـ آنې ، زياتره هغه ښځينه نومونه ډيرگړي کوي چې پاي ته يې لنډه ي

راغلې وي لکه بيبيانې ، شاديانې ۰ او ديوي بلې نښې (ينډي) د بلگړ په توگه ، لکه :

ډوډيانې ، مزدورانې ، ترورانې ( ترينډي )، مورانې (ميندي) ۰۰۰۰

۵ــ یندئ هماغه پیواکیایه خپلوان نوموته ویرګړي : کوي‌چې ورسره لنډون‌موس لکه میندي ٔ خوندي ٔ نزیندي ٔ ترندي •

۶ــ صفر داماناچې په زورکښ واله ئ باندي پای‌نوموته یې له کومې نښې دویرګړي په توګه هم راځي• لکه : کړ کړ ٔ پچلې ٔ ووی ٔ خپلې ٔ ټټرئ (واسکټ) ٔ بلګړیس (پانې) هم‌یوڅه دودلــري • لکه : کړکیانې ٔ پچلیانې ٔ کوچیانې ٔ موچیانې ٔ کبلیانې ، کچنیانې ٔ چینکیانې ٔ ترورېانې (ترورئ) •

بې دوه (مستثنی) • لکه : نجونې او نجونه ٔ لونې •

۳ــ پیر (حالت) • چې نوم په‌خپل چاپیریال (غونډ یاغونډ له) کې څه حالت لري • لکه : پلوشه راغله ٔ پلوشې ووی وخوړه ٔ دپلوشې وروږ ناروغ‌دي ٔ له یوه لاسه تک‌به‌خیزي ) دلته‌ګورو چې (پلوشه ٔ یو اولاس) څنګه‌خپل حالتونه او بڼې بدلوي • په پښتوکې دیوه نوم پیرد کړوال جار(فعلی عملیې ) اوویکو(اداتو ) له‌مخې ښرګندیږي اودپیرنښې یې هماغه پایلې یاروستاړي دي‌چې په پای پورې یې نښلي • نومپیرونه‌په داوروسته ډول‌دي :

۱ــ کړندپیر(فاعلي حالت ) لکه ځلمي ووی وخوړه • ځلمی راغی • ځلمی ووی خوري • په دریواړو غونډ لوکې ځلمی کړند پیر لري یا په بله وینا په دریواړو ځایوکې ځلمی کړند (فاعل ) دي•

۲ــ لنډ کړی پیر (بې واسطه مفعولي حالت ) لکه : بارک اوبه وڅښلې • بارک پلوشې ته لیکې (کتاب ) ورکړ • خوارک پلوشه ووهله • په دي غونډلوکې (اوبه ٔ پلوشې اوپلوشه) لنډ کړی (بې واسطه مفعولونه) دي یاپه بله‌وینا لنډکړي پیرلري •

۳ــ لرکړي پیر( بالواسطه مفعولي حالت) • لکه : ببرک زمرک ته لیکانې‌ورکړ سنګ اځرک ته خبره وکړه • غرزې ماته روښـــن ژبه رازده کوي • په دي غونډ لوکې زمرک

ځینې او ( ما ) ترکړي دي یا په بله وینا دغه دریوار ه نوموته لرکړي پېرلري او په هغه غږ غږونه لرونکی ( لیکاني ، خبره او ودمني ژبه ) لنډه کړي بلل کیږي . یا په بله وینا دغه دریواړه نوموته لنډه کړي دي .

۴ ــ لرونکی پیر ( الی حالت ) : داماناچې دیوه لونیې یا الی په وسیله یوکار ترسره شوی وي لکه ؛ تورپالي په بیاتي ژړل شو ــ بریالی په لیکاني یو لیک وکیښ ــ ګلخانګه په کاشوغه ډوډۍ خوري . په نغرد رو بیلګو کې ( بیاتی ، لیکاني او کاشوغه ) لونه ــــ ــ ن یا الی نوموته دي او په دې توګه لونګ پیر لري .

۵ ــ تونپیر ( اضافي حالت ) : هغه نوم چې یو شه وړورپاره لري ، تولنوم ( مضاف الیه ) ګڼل کیږي او تول پیر ( اضافي حالت ) لري . لکه ؛ د ویالي اوبه ښې دي ، د ځمکې ګول شکلی دي . دا اسمان ستوري په وریځ کې پټیږي . ( ویالی ، ځمکې او اسمان ) تولنوموته دي یا په بله وینا دغه د وینوموته تولپیر غوره کړي دي .

۶ ــ زتون پیر ( انتهایي یا مفعول منه حالت ) ، داماناچې یونوم دیوه کار پیلیځ ( منشا ) ګرځېدلی وي . لکه ؛ له کند هاره راغلم ــ له ښوونځي راغلم ــ له بدو وابنه زېږي . دلته ( کندهاره ، ښو او بدو ) زتون پیرلري .

۷ ــ تون پیر ( داخلي یا مکاني او زماني حالت ) هغه ارنګه مفعول الیه یا استقامتي او معیتي حالت ) ؛ هغه مثال نوم یا ځایونوم چې دیوه کار ظرف ګرځېدلی وي او یا ورته یو کار متوجه شوی وي . تونموم بلل کیږي او په دې توګه تون پیرلري . لکه ؛ په کور کې څوک نشته ــ په شپه کې ځلمک لیږنګړي ــ زه د ورځې کارکوم . دلته ( کور ، شپه او ورځ ) تونپیر یا ظرفي حالت غوره کړي دي .

۸ ــ بلن پیر ( ندائیه حالت ) : کله یو نوم ته بلنه یا غږ شوی وي . بلنموم ( منادا ) بلل کیږي او حالت یې بلنپیر وایي . لکه ؛ ای هلکه ! ای خلکو ! واخلمیه ! ( هلکه ، خلکو او خلمیه ) بلن پیرلري .

یادښت : که یوه نوم په کوم پورتنی پیرکی خپلی ښڅی ته بدلون ورکړی وي ۰ او ښتی نوم بلل کیږي یا په بله وینا هغه نوم اوښتی پیر (مغییره حالت) لري او که اوښتنه یی نه وي موندلی نو ارنوم ورته وایی او حالت یی ارپیر (اصلی حالت) بلل کیږي ۰

دنوم پیر (اسمی حالت) نښی (پایلی) ، زیاتره له ګڼی (جمع) هغو سره سمون لري ۰ لکه څلمی — دڅلمی — پلوشه — دپلوشی ، شپون — د شپانه ، غل — غله ۰۰۰

پرته له ا ن اووې او د هغو له بلګړ ونو (لیوان ، سیندونه ، بیبیانی ، شادیانی ، ژړاوې) او د بیواکپایو ښځینه نومونو (میندي) ۰

ډیرکړي (جمع) نــو مونه بیا په یو مخیز ډول خپل اوښتی پیر په (و) ښیی ۰ لکه : دښځو — سړیو — هلکانو — خویندو — بریښناګانو ۰۰۰۰

په دي توګه په ا ن ، وې ، ونه ، انی ، یندي او د دوي په نورو بلګړ و نو (الومورفونو ) جمع کیدونکی نرینه او ښځینه نومونه له (بلن پیر) پرته نوره او ښتنه نلري ۰ البته په بلن پیرکــی بیواکپای نومونه خپل پای په زورونو (فتحو) روستاړي کوي ۰ لکه په هلــکه! یه موري! یه پښتنو! داوښتونکو نومونو فورمول په دي ډول دي :

زه ، ته (دحال مفعولیت پرته) ، دي ، دا ، هغه ، څوک ، سړي ، ښځـه ، پښتون ۰۰۰۰

— وییکی (ادوات) یادلیزند تیرمهال کړند والی (متعدي ماضی فاعلیت) = ما ، تا ، ده ، دې ، هغه (په زورکی) ، هغی ، چا ، سړي ، ښځی ، پښتانه ۰۰۰۰۰

نا اوښتونی (تغییر نه موندونکی) نومونه : ځینی د اسی نومونه شته چی په یو ګړي ښه په اتو واړو پیرونوکی کوم جولیز اوښتون (تغییر) نه مومی او هغه دادي :

ا — الف پای نومونه : لکه کاکا ، ملا ، دادا ، پښتیانا ، اریانا ، پکتیا ، سبا ، یما ، کیشکا ، لوړتیا ۰۰۰۰

روغتيا ، هيله ، ننګ ، پت ، ميړانه ، پياوړيتوب ، رخه (کينه) ، خونس ، خوږ (درد) ، وير ، زغم ، انديښنه ، لوبې ، درناوي ، سپکاوي ، ښيګڼه ، بدي ....

٣ـ ځانګړنوم (خاص اسم ): چې يو ځانګړي شيز ، پديدې ، وګړي يا ځاي نوموي ، لکه پښتو ژبه ، پښتونواله ، خوازك ، زرمينه ، ننګرهار ، کندهار ، پکتيا ، هند ، ايران ......

٤ـ ټولنوم (عام اسم) ٠ داسې شيز يا ښکارنده نوموي چې ځانګړي او خاص نه وي بلکه ډولونه او ځيلونه ولري ٠ لکه ونه ، هلك ، نجلۍ ، هيواد ، ځاروي ، وګړي ، اولس ، تړون ، ژمنه .... ...

٥ـ نوږ نوم (جنس اسم) : چې په يوه شميريدونکی شيز (جنس) اړه لري ٠ لکه : زر ـ اوبه ـ اوسپنه ـ اور ...

٦ـ غونډنوم (جمع اسم) : چې يوه ډله او غونډه نوموي ٠ لکه : ټولی ، ټولګی ، ګونډ ، ټبر ، ګورم (پاده) ، رمه ......

٦ـ انګينوم (صوت اسم) : چې د طبيعی يا مصنوعی اوازونو انګی يا انګازه (پژواك) نوموي ٠ لکه : درز ٠ دروز ٠ درزي ٠ درزا ٠ درزهار ٠ ګرب ٠ ګروب ٠ ګرېی ٠ ګربا ٠ ګرېهار ٠ ترپ ٠ تروپ .....

دويم ـ ستاينوم :

ستاينوم (صفت) چې په خپلواك ډول څه نه نوموي بلکی د يو څه څرنګوالی نوموي يا په بله وينا يو ستاينوم په يوه شيز نوم اړه لري او د هغه څرنګوالی ښيی ، لکه تود ، سوړ ، غټ ، ووړ ، تور ، سور ، ښکلی ، ښايسته ، غښتلی ، کمزوري ، روغ ، ناروغ ....

په پښتو کی ستاينوم د لوړتيادپوړونو يا د لږوالی ، ډيروالی ، سستوالی او توندوالی بيلابيلی ښکاره د ريګونی درجی نلري لکه په دري ژبه کی په ـ بهتر ـ بهترين يا بزرګ بزرګتر ـ بزرګترين

له دې کبله یې پښتو ستاینوم د وییکو ( اداتو ) په ملتیا خپل پوړونه یا درجې او طبقې ښکاره کوي لکه ښه — ډېر ښه — لا ډېر ښه یا سپین — ډېر سپین — خورا سپین — تر ټولو سپین — زښت زیات سپین او دا سې نور .

د ستاینوم ډولونه :

ستاینوم په دوه ډوله دي ، لنډ او لښر .

لنډ ستاینوم ، هغه دي چې تر څیز نوم د مخه او ورسره جوخت را ځي او لنډ په لنډه یې ستایي ، لکه توره ډېره ، روغ سړي ، ښکلې نجلۍ . . .

لرستاینوم ، هغه دي چې تر څیز نوم وروسته راځي او له کړوالي برخې (مسند ) سره پیوستون لري ، که څه هم هماغه څیز نوم ستایي ، لکه : ډېره توره ده — سړي روغ دي — نجلۍ ښکلې ده . . . . . .

لرستاینوم زیاتره د کړول ( قید ) په توګه هم کارول کیږي لکه هلک پلن راغی — اسمان په ستورو ( ښه ) ښکاري — پلوشه ( ښکلې ) پرېښې — زړه کورته ( ډېر ) ځم . . . .

د ستاینوم او ستایلي ( صفت او موصوف ) ګردانې سمون :

په پښتو کې ستاینوم ( لنډ یا لر ) او ستایلي یا هغه څیز نوم چې ستایل کیږي . د نوم اوړون د د روګونو اړخو ( نوزي — ګڼې — پېر ) له پلوه سره زیاتره سمون لري لکه : ړوند غل — ړنده غله — ړانده غله — ړندې غلې — د ړاند غله — د ړندې غلې — د ړندو غلو . . . . . .

یا په نابشپړ ډول او یا ازتړلېزه ډېوه یا دووا ړ خوله پلوه : لکه لوي غل — لویه غله — لوي غله — لوي غلې — د لوي غله — د لویې غلې یا سپین غل — سپینه غله — سپین غله — سپینې غلې — د سپین غله د سپینې غلې — د سپینو غلو . . . .

په دې توګه ځینې ستاینومونه له خپلو اړوندو ( مربوطو ) څیز نوم‌ونو ( ستایلیو ) سره بشپړ اوړون موس او ځینې نیمګړي . لکه په دې لښتیلیک ( جدول ) کې :

شین ښځکی – شنه ښځکی

د شنه ښځکي – د شنو ښځکیو

شنه هندوانه – شنی هندوانی

د شنې هندوانی – د شنو هندوانو

د ریم – شمیرنوم ( عدد اسم ) :

شمیرنوم هم د ستاینوم غوندې په خپلوا ك ډول كومه نومونه نه كوي بلكې په يوه شيز نوم اړه لري . خو د ستاینوم غوندې یې څرنګوالی نه چی څومره والی او پوړوالی (تدرج) ښيي . لكه یو – دوه – دري .... يا لومړی – دویم – دریم ....

د شمیرنوم او شمیرلی ( عدد او معدود ) گردانې سمون :

په پښتو کی شمیرنوم لکه لنډ ستاینوم ترخپل اړوند شیز نوم ( شمیرلی ) د مخه راځی او ډېر لږ ورسره اوړون موهی . هغه دا چی لومړي دوه (یو) او (دوه) ورسره د نوزي او پيرله مخی گردانیږي او نورپورته ورسره یواځی د پیرله مخی ، لكه په دې لنبتیلیك كی :

| | |
|---|---|
| یوغل | یوه غله |
| دیوه غله | دیوې غلې |
| دوه غله | دوې غلې |
| د دوو غلو | د دوو غلو |
| دري غله | دري غلې |
| د درو غلو | د درو غلو |
| څلورغله | څلور غلې |
| د څلورو غلو | د څلورو غلو |
| ...... | ....... |

د شمیرنوم ډولونه :

شمیر نوم د اوروسته ډولونه لري :

۱ـ آر شمیر (اصلي عدد) لکه یو ـ دوه ـ دري ـ څلور .....

۲ـ پوړ شمیر (وصفي یا رتبي عدد) چې د خپل شمیرلي پوړ اورتبه ښیي لکه :

لومړي ـ دویم ـ دریم ـ څلورم .....

۳ـ وړ شیمر (کسري عدد) ، چې داړوند ځیزنوم (شمیرلي) ماتوالي او برخه والي

ښیي لکه دویمه ـ دریمه ـ څلورمه ......

لس (دهه) سل (سده) زر (هزاره) یو ډول ګروپ شمیر نومونه دي .

۴ـ ویش شمیر (انقسامي عدد) چې داړوند ځیز نومونو ویشنه او جوړه جوړه

کونه ځرګندوي او په دي توګه د وړ شمیر غوندي له ډیرګړیو (جمع) ځیز نومونو سره اړه لري نه

له یوه سره ، لکه : یو یو ـ دوه دوه ـ دري دري ـ څلور څلور .........

ا ـ اټکل شمیر (تخمیني عدد) چې دیوه ځیز نوم (معدود) پرځاي غبرګ غبرګ ځیزنومونه

ښیي . او بوهم نه تاکي لکه : یو دوه ـ یو دري ـ دوه دري ـ دري څلور ـ یولس ـ لس شل ـ

شل دیرش ـ پنځوس شپیته ...... په دي توګه اړوند ځیز نومونه د داړو شمیر نومونو

تر منځ اټکلیداي اړ ومیریداي (انتخاییداي) شي ، یا لومړي یا دویم اویا د هغو تر منځ .

دغه جوړه جوړه شمیر نومونه زیاتره پرله پسې وي لکه یو دوه ـ دوه دري اویا په یوه تاکلي

اوعام منلي واټن سره لکه اته ـ لس یا لس شل مګر ښایي هیڅ یو پښتون دوه څلور ـ دري

پنځه ـ څلور شپږ ..... ونه وایي . البته (یو) له هر پوړته شمیر سره جوړه کیداي شي

خو هغه هم زیاتره د پیژند (حرف تعریف) په توګه چې اټکل ورسره په ځرمه (ضمني) ډول

هم ځرګندیږي .

## څلورم ــ نومځــــــــري (ضمير)

نومځري هغه وي دي چې ديوه نوم ښکارندوی کوي، دهغه پرځای راځي او يا يې ملګرتيا کوي. او دهمدغې دندې له مخې د نومونو په ډله کې ځای نيسي. له نورو نومونو (ځيزنوم ــ ستاينوم او شميرنوم) سره د نومځري توپير دادی چې د اپر د روګونو او خو (نوزي ــ ګڼي او پير) سرپيره د وګړي (لومړي ــ دويم او دريم) له مخې هم اوړون مومي. (وينفريد اولريښ د ژپوهنې قاموس ۹۴۲).

د نومځرو ډولونه: نومځري د جولې او چارله مخې پرديي وروستيو ډلواو ډلو ويشـــل کيږي.

ا ــ ځانګړ نومځري (شخصي ضميرونه) چې دوه ډوله دي: غښتلي ــ کمزوري؛

الف ــ غښتلي (منفصل):

| ګڼه / وګړي | يوګــــړي (مفرد) | | | ډيرګړی (جمع) |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | اريـــر | | اوښتی پيـــر | مــــوږ |
| | زه | | مــا | |
| ۲ | تــه | | تـــا | تاســـی |
| ۳ | نرينه | دي هغه | ده هغــــه | دوي هغــوي |
| | ښځينه | دا هغه | دې هغې | |

ب ــ کمزوري (متصل):

| ګڼه / وګړي | يوګـــړي | ډيرګــړی |
|---|---|---|
| ۱ | مې | مو |
| ۲ | دې | مو |
| ۳ | يې | يې |

۲ـ تولنو مخري (ملکي یا اضافي ضمیرونه)، چې تول (ملکیت) اواړوندي (متعلقیت) ښیي، دغه تومخري هم پرغبتلیو او کمزوریووپشل کیږي :

الف ـ غبتلي (منفصل) :

| وګړي / ګڼه | یوګړي | ډیرګړي |
| --- | --- | --- |
| ۱ | زمـــا | زمـــوږ |
| ۲ | ستـــا | ستاســـو |
| ۳ | نرینه: د ده<br>ښځینه: د دې | د دوی |

کمزوري تولنومخري کټ‌مټ دځانګړیو کمزورو هغوغونډي دي لکه :

| وګړي / ګڼه | یوګـــړي | ډیرګـــړي |
| --- | --- | --- |
| ۱ | مې | مو |
| ۲ | دې | مو |
| ۳ | یې | یې |

۳ـ نغوتنومخري (اشاري‌ضمیرونه)؛ هغه تومخري چې وګړو یاشیزونوتــه نغوته (اشاره) کوي اودهغو دنومونو ځاي نیسي اوبا ورسره لکه ستاینوم ملګرتیا کوي نغوتنومخري دنوزي ـ ګڼې ـ پیر ـ او یواځې ددریم وګړي اوواټــن (فاصلې) له مخې اوړونلري :

| وګړي / ګڼه | | یوګـــړي: اړیـــر | یوګـــړي: اوښتن پیر | ډیرګـــړي: اړیـــر | ډیرګـــړي: اوښتن پیـــر |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| ۱ | لنډ | دغه<br>دغه | دغه ده<br>دغس | دغه | دغـــو |
| | لر | هغه | هغه ده | هغه | هغو |
| | | هغه | هغس | | |
| | لالر | هوغه | هوغه ده | هوغـــه | هوغـــو |
| | | هوغه | هوغس | | |

٤ــ پوښتنو مخري (استفهامي ضميرونه): چې د یوې پوښتنې لپاره په کار لویږي او د وګړي ــ شیز ــ مهال ــ تون ــ خرنګوالی او څومره‌والی له مخې بدل بدل وي ٠ او رون یې زیاتره یواځې د پیرله پلوه لږ و ډیر تر سره کیږي :

ــ څوك (چا) ؛ چې د وګړي یا وګړو لپاره راځي چې څه یې کړي یا یې کوي یا پرې څه شوي یا کیږي ٠ او زیاتره د پوښتنې غونډلو (جملو) په سرکې راځي ٠

څوك راغی ـ راغله یا راغلل؟ ٠ څوك ځي؟ ـ چا ویل؟ ـ څوك وایي؟ ـ څوك یې وواهه؟ ــ ووهله یا ووهل؟ ـ څوك ووهل شو؟ ــ ووهل شوه؟ ــ ووهل شول یا ووهل شوي؟ ــ څوك وهل کیږي؟

څوك داریك او ناټاك نومخري په توګه هم کارول کیږي او همدارنګه د پیژند (حرف تعریف) کار هم ورکوي لکه څوك مې وليد ــ نن یو څوك راځي ٠

ــ کوم : د وګړي یا وګړو ــ شیز یا شیزونو لپاره راځي چې د نورو پوښتنو مخرو پرخلاف پر پیر سر پیره د نوزي له پلوه هم اورون لري ٠ لکه په دې وروستیو غونډلوکی :

کوم سړي راغی ؟ کوم سړي ووېل ؟ د کوم سړي رنګ زیړ وي ؟ کومه ښځه راغله ؟ کومې ښځې ووېل ؟ د کومې ښځې رنګ زیړ وي ؟ کومو ښځو ــ سړیو ووېل ؟ د کومو ښځو ــ سړیو رنګونه زیړ وي ؟

ــ کله : چې مهال پوښتي او هیڅ اورون نلري ؛ لکه کله به راشې ؟

ــ چیري : چې تون (ځاي) پوښتي او هیڅ اورون نلري : لکه چیري ځې ؟

ــ څنګه : چې د یوه وګړي یا شیز یا یوه چار څرنګوالی پوښتي ؛ لکه څنګه راغی ؟ څنګه راغله ؟ څنګه کار دې وکړ ؟ څنګه نجلۍ دې ولیده ؟ څنګه لیکې دې ویره ؟

ــ څه : چې زیاتره د یوه شیز یا وګړي پیژندنه پوښتي او زیاتره په ډیر ګړي او نوز نوم (جنس اسم) پوري اړه لري ؛ بې له دې چې خپله بڼه واړوي ؛ لکه : دا څه دي ؟ دا څه دي ؟ څه دې وکړل ؟ څه دې راوړل ؟ څه یې نرخ دی ؟ څه یې ارزښت دی ٠

ــ څو : چې د وګړو یا شیزونو شمیر پوښتي نو ځکه تل ډیرګړي دي لکه :

څو نجونې راغلې ؟ څو هلکان راغلل ؟ څو ختونه دې ویړل ؟ البته څو په یوه بله مانا یو کړول (قید)

– پس (بسویش) چی نوم په تونپیرکی ښیی لکه د زهرو گولی خورم پس ( ملنگ جان ) ۰

– باندې ( بالایش ) چی یو نوم په تون اوهغه هم په پورتنی (استعلایی ) پیرکس ښیـــــی لکـــه :

گل وای غوړېد لی باندې ملاست وای زه اوته ( خوشال ) ۰

– پرې ( بران ) هم ( باندې ) ورته دندہ پرځای کوي لکه :

ماپرې سرکینبود – پیس می پرې پورد ې ۰

– پسی ( به ان ) چی ( په اوبرې ) هم ویل کیږي په یوه لوښنی (الی )پیرکس دیوه نوم ځای نیسی اوله (پرې ) سره یی په دې غونډه لو کی توییر کولای شو :

زه په پښتو لیکه کوم ( من به پښتو می نویسم ) زه پرپښتو لیکه کوم ( من د رباره پښتومی نویسم ) ۰

ترې ( ازان ) چی یونوم په وتون او تون او هغه هم په کښتنی ( استفلایی ) پیرکی ښیی لکه :

ماترې واخیست – ماترې لاندې کینبود ځینی له دغوییکونوځروسره پلوی نوموځری هم مختیاري کیدای شی لکه را – د ر– وریاندې ۰۰۰ مگر دوریکی پرځای (ورکی ) ویل کیږي لکه له نورو اوسرېلوسره ( ورلاندې – ورته – ورسره – ورځخه ۰۰۰ ) ۰

۷– اړیک نوموځري ( ارتباطی ضمیرونه ) : چی په یوه غونډه له کی د تیري یا راتلونکی غونډه لی له یوه څیز نوم یا نوموځري سره راز راز اړیکی ټینگوي ۰ په دې توگه په دې وروسته ډولـــبو ویشل کیـــږي :

– چی : لکه خوازک چی د ببرک ورور دې ، ننگرهار ته ولاړ – ننگرهار یوسیمه ده چی تود ه هوالري – زموږ هیواد په داسی ځای کی پروت دې چی سمندرته لارنلري – هغه کال ډیرودان وي چی ډیر اورښت ولري – زموږ هیواد د ومره ښکلی دې چی له سویس سره سیالی کوي ۰ زه د ومره کتابونه لرم چی له شمیره وتلی دي ۰

– چی یـــی : یوتړښتی ( ترکیب ) یا د وه توکیزه ( د وه جزیی ) اړیک نوموځري دې ، چی هم په تیره غونډه له کی له راغلی نوم سره اړیکی ټینگوي او هم د هغه کړند والـــی ( فاعلیت ) ، کړیوالی ( مفعولیت ) اوتولوالی ( ملکیت یا اضافت ) څرگندوي ۰ لکه : پکتیا یوه داسی سیمه ده چی یی ځنگلونه نوم لري – سنگ ځکه بریالی شو چی یی زیار ایستلی و– ماشوم هله په ژړا شو چی یی مور ورواهه ۰ په دې وروستی غبرگه غونډه له ( مضاعفـــه جمله ) کی

(چي يني )هم له ( هله) سره اړيکي بنيي اوهم دماشوم کړيوالی ( مفعوليت) او تولوالی (ملکيت له مور سره)۰

څوک چـــــ : يوبل ترښتی اړيك نومخري دي چي يوائحی هغه وخت د څرمه غوندولی ( فرعی جملی )په سرکي راځی چي ترآ ري دمخه وي نو ځکه وايو(څوك چي خوب کړي نري کتـــ به زيږوي )نه داچي ووايو :(نر کتـــ به زيږوي څوك چي خوب کــــوي يالکه اجمل ختټك چي وايی : ( ځی ۰ هغه خواروته جنت وګټـــو-څوك چي له موره دوزخيان پيدادي )۰ ددي ګرامري بڼـه داسی مفيداي شي چي دويمه( څرمه غوندولی )پراوملی ( اري غږندولی ) دمخه کړو( څوك چي له موره دوزخيان پيدادي ــ ځی هغه خواروته جنت وګټـــــو) اويااداچي څوك تري وغږوو ۰ په دې ډول دتوروژبولکه اروپايي هغرپه پيبنود ناسمو ۰ غوندولو بيلګی دادي :

غرزي کده ارته ولاړ څوك چي هلته خپلوان ګوري پتنګ په لوړي ګڼه برپالی شو چاچي زيار ايستلی و۰۰۰۰۰

سم يــــــــس : غرزي کده ارته ولاړ چي هلته خپلوان وګوري پتنګ په لوړي ګڼــــــه برپالی شوه چي يي زيار ايستلی وه۰۰۰۰۰۰

همداراز چيري چي ــ کله چي ــ کوم چي ــ څــه چي ــ څوچي ــ څومره چي ۰۰۰ بيواخله ۰ لکه په دي غوندولوکی : غرزي کده ارته ولاړ چيري چي خپلوان ګوري ــ زه هيواد ته هغه وخت راستون شوم کله چي ډيره وچويه وه ــ مايو ليکانی واخيست کوم چي ښه کارکوي ــ کاربنه دي څه چي نيکمرغی راوړي ــ پنځه کتابه می واخيستل څوچي زما په کاروو ــ دومره غنم می وپيرل څومره چي می پيرلاي شول ۰۰۰۰۰

سمسـبڼـس يی : غرزي کده ارته ولاړ چي خپلوان وګوري ــ زه هيواد ته هغه وخت راستون شوم چي ډيره وچويه وه ــ مايو ليکانی واخيست چي ښه کار کوي ــ کاربنه دي چي نيکمرغی راوړي ــ پنځه کتابه می واخيستل چي زما په کاروو۰۰۰۰۰

په دې ډول پښتو له آره هم دا یو ( چې ) هم د اړیك ویکی په توگه کاروي او هم یو،

د اړیکـــــــــنومځري په توگه او د پورتنیو پوښتنو ځرو ( څوك ــ كله ــ چیري ٠٠٠٠ ) ملگري

کول ورسره بې ځایه دي په تیره په آره غونډه له اړ یا په د اس ځرمه کې چې تر آري وروسته راځي٠

البته څوك ــ كله چیري اونورپوښتنو ځري چې له (چې ) سره ملگري کیږي یوا ځې د اړیکو

ییکو (ارتباطي اداتو) چار څرگندوي نه د اړیکو ځرو ؛ لکه څه چې کړي هغه به ریبـــــــــې ـ

څنگه غر هسې یې کړیوړي ـ هله به خبرشي چې تاروجې له ورشي ـ چیري دي بـــــــــه

هلته دې شپـــــه ! څومره چې گوړه اچوي هومره خوږیږي ٠٠٠٠٠

٨ـ غبرگون نومځري یا انعکاس ضمیرونه :

هغه نومځري دي چې ډېره چار هم کړند اوس او هم کړي په پښتو کې د اراز نومځري نومونو

یا ځانگړنو ځروسره د (( ځان )) په ملگري کولو لاسته راځي چې زیاتره په همدي یوه یوگړي

( مفرده ) بڼه هرځاي را تلاي شي لکه : ځلمي ځان ژوبل کړ ـ ځلمي او زمري ځان (ځانونه)

ژوبل کړل هغه ځان ژوبل کړ ـ هغوي ځان (ځانونه) ژوبل کړل ٠ دپوره څرگندتیـــــــا

لپاره له ځان سره (خپل )هم ملتیا کوي لکه هغوي خپل ځان ژغوره ٠

٩ـ ناڅکمنو ځري (ابهامي ضمیرونه) : چې ډیوه ناجوت (نامعین) وگړي

یا څیز لپاره راځي او د بیلا بیلو ډندو له مخې په لاندې ډولو دي :

ـ هر: چې زیاتره په یوگړي اړه لري او د نوزي او پیر له مخې لږو ډیراوړون

لري: لکه هر ځلمی ـ هره پیغله ـ هرخت(کمیس) ـ هره گنډ ۍ (کرتی) ـ هري پیغلی ٠

په اوښتي ډیرگړي کې لکه هرو پنځو شاگردانو ته یو یو لیکی ورمید ٠ یا تره په هرو دوو اوونیوکي

سینمـــــا ته ځم ٠

ـ بـــــــــل : یواځې د شمیرید ونکی یوگړي نوپرځاي راځي او یا ورسره د نځونتر

ځري غوندې ملگرتیا کوي ٠ لکه : بل ځلمی ـ بله پیغله ـ د بل ځلمي دبلی پیغلی ٠٠٠٠

ــ نور : یزاخی د ټیرګړي یانوز نوم (جنس اسم) ښکارندوین اوملګري کوي اوځه ناځه اوړون لري لکه نور هلکان ــ نوری پیغلی ــ نورغنم ــ نوره وسپنه ــ نوره خاوره ــ نورې اوبه ــ دنورو هلکانو ــ دنورو پیغلو ــ د نورو غنمو ــ دنورې وسپنې ــ دنورې خاورې ــ دنورو خاورو ــ دنورو اوبو ......

ــ ټــول : دنورغوندي په ټیر ګړي او نوز نوم اړه لري اوله لویدیزي پښتو پرته هماغسی اوړون مومی لکه ټول هلکان ــ ټولی نجونی ــ ټول تیل ــ ټوله خاوره ــ ټولی خاورې ــ ټولو هلکانو ــ د ټولو هلکانو ــ ټولو نجونو ــ د ټولو نجونو ــ د ټولو تیلــو ــ د ټولی خاورې ــ د ټولو خاورو .......

ــ واړه : د ټول همانیزدي خوباځی د نوزي او پیرله مخی اوړون او اوښتون مومی ــ لکه واړه هلکان ــ واړي نجونی ــ واړو هلکانو ــ واړو نجونو ــ واړه خاوره ــ واړې خاورې ــ دواړې خاورې ــ دواړو خاورو ......

ــ دواړه : ټل د وګړي (تثنیــه) دي او د (واړه) غوندي په نوزي (جنس) اوپیر اړه نلري لکه : دواړه هلکان ــ دواړي نجونی ــ دواړو هلکانو ــ دواړو نجونو ..

ــ څه : پر... بروښتنو مخري سرپیره یو ناوړیدونی ناټیک نومخري هم دي لکه : څه می ولیدل څه نشته ــ چېی نه کار هلته څه کار . څه له نورو ناټیکنو مخرو او ځینو ستاینو مونو سره تړښتی ناټیک نومخري جوړوي لکه : بل څه ــ نور څه ــ هرڅه ــ هیڅه (هیڅ څه) لږ څه ــ ټیر څه .. همدارنګه له پیژند (یو) سره لکه یو څــــه .

ــ څــو : هم پر بوښتنو مخري سرپیره یو ناوړیدونی ناټیک نومخري دي لکه : څو ییسی می په کار دي ــ څو میاشتی په کار دي چی زه کتاب ولیکم . څو له پیژنداو ځینو ناټیک نومخرو سره تړښتی ناټیک نومخري جوړوي لکه : یو څو ــ هر څو ــ هیڅو (هیڅ څه) ...

ــ ځینی : د ټیرګړي او نوز نوم ښکارندوین کوي لکه ځینی شاګردان ځینی شاګردانی ځینو شاګردانو .....

— هیڅ : دیوه ناټاکلی څیزیا څیزونو نشتوالی ښیی او کوم اوړون نلري ۰ لکه :

هیڅ هلك ، هیڅ هلکان ، هیڅ نجلۍ ، هیڅ نجونې — هیڅ هلکانو — هیڅ نجونو هیڅ غنم — هیڅ غنمو ۰۰۰۰۰ له پیژند(یو ) او زیاترو ناټیك نومځرو سره دلومړي ټوك په توګه ترښتی ( ترکیبي ) ناټیك نومځري منځ ته راوړي لکه : هیڅ یو — هیڅه — هیڅو — هیڅو مره — هیڅ کوم — هیڅ بل — هیڅ نور — هیڅوك — هیڅکله — هیچیري ( هیڅ چیري ) هیڅ دواړه یا په دري توکیز ترنګ ( دري جزئی ترکیب ) کی لکه : هیڅ کوم یو — هیڅ کوم څوك یا په څلورو توکیز ترنګ کی لکه : هیڅ کوم یو یم — هیڅ کوم یو بل ۰۰۰۰۰۰

— څوك : هم پرېوښتو ځري ( او اړیك نو ځري ) سربیره یو ناټیك نومځري هم دي چی هم دڅیزنوم ښکارندویی کوي اوهم دپیژند ( ارتیکل ) لکه : نن څوك راغی — څوك یوکار کوي ، څوك بل — چاسی لیکنی واخیست — څوك سړي راروان دي — څوك ښځه می ولیده ۰ په نورو پیرونو کی لکه : چاته می لیکی ورکړي دي خواوس می هیر دي — له چانه می لیکی واخیست بیامی هیرشو — خپل کار په چانه کوم — ځلمی له چاسره پریوځلارنه ځی زه څوك نه وهم — پرچا کار نلرم — څوك چی بل چاته کوهی کینی ۰ پخپله پکی لویږي — له ماسره دچاځه کار دي په شپه کی چاته ورتګ ښه نه دي ۰۰۰۰۰۰

له پیژند ( یو ) او ځینو نورو ناټیك نو ځرو سره هم ترښتی ( ترکیبي ) ناټیك نومځري جوړوي ۰ لکه : یو څوك — هر څوك — هیڅوك — بل څوك — نور څوك — څوك سړي — کوم څوك — کوم چا یا لکه پښتو ریان چی وایی : چا ظالم می ژبه پریکړه ۰

— سړي : پرڅیزنوم او ستاینوم سربیره یو ناټیك نومځري هم دي او تر بلن پیره پوري په تولو پیرووکی راځی لکه سړی دي څه کوي چی څوك تري ونه ځوریږي ۰ بایـد له سړي له لاسه داسی کارونه شی چی وروسته پري پښیمان شی — دلته دسړي هره هیله نه پرځاي کیږي سړي دي سړي ته ګوري او بیا دي ورسره هماغسی چلند کوي ۰ لومړي دي سړی سړي ته پوزنه ورکوي او که وریی کړ بیا دي تري ژړنه غواړي — وسړیه ستاله چاسره څـنه کار ! له پیژند ( یو ) او ځینی نورو ناټیك نو ځرو سره ترنګونه ( ترکیبونه ) هم

ددوو دوو نومخرو دنده پرځای کوي له همدي کبله دوه ارخیزاو ړون لري او هغه هم دنوزي ــ گنهس ــ پیراو وگړیله مخې څانگړي ورسره یواځې په دریم وگړي اړه لري لکـــه :

۱ـ تول نومخري‌ه یوگړي څانگړ نومخري :

| گنه / وگړي | یوگـــړي | ډیرگـــړي |
|---|---|---|
| ۱ | هغـــه<br>هغـــه<br>زمادي ــ هغه (دمـ هغه)<br>زمادا ــ هغه (دي ــ هغی) | زموز دي ــ هغه (دمـ هغه)<br>زموز دا ــ هغه (دي ــ هغی) |
| ۲ | ستادي ــ هغه (ده ــ هغه)<br>ستادا ــ هغه (دي ــ هغی) | ستاس دي ــ هغه (ده ــ هغه)<br>ستادا ــ هغه (دي ــ هغی) |
| ۳ | دده دي ــ هغه (ده ــ هغه)<br>دهغه‌دي ــ هغه (ده ــ هغه)<br>ددي دا ــ هغه (ده ــ هغی)<br>ددي هغه ــ هغه (ده ــ هغی) | ددوي دي ــ هغه (ده ــ هغه)<br>ددوي دا ــ هغه (دي ــ هغی) |

۲ـ تولنو مخري‌ه ډیرگړي څانگړ نومخري :

| گنه / وگړي | یوگـــړي | ډیرگـــړي |
|---|---|---|
| ۱ | زما دوي ــ هغوي | زموز دوي ــ هغوي |
| ۲ | ستا دوي ــ هغوي | ستاس دوي ــ هغوي |
| ۳ | دده دوي ــ هغوي<br>دهغه دوي ــ هغوي<br>ددي دوي ــ هغوي<br>دهغی دوي ــ هغوي | ددوي دوي ــ هغوي |

۳ـ تولنو مخري اړه یوګړي نغرتتو مخري :

| گنه / وګړي | یوګړي | ډیرګړي |
|---|---|---|
| ۱ | زما دغه ـ دغه ـ دغی | زموږ دغه ـ دغ ـ دغه ـ دغی |
| ۲ | ستا دغه ـ دغه ـ دغی | ستاسی دغه ـ دغه ـ دغس |
| ۳ | د ده دغه ـ دغه ـ دغی<br>د هغه دغه ـ دغه ـ دغی<br>د دې دغه ـ دغه ـ دغی<br>د هغې دغه ـ دغه ـ دغی | د دوی دغه ـ دغه ـ دغی |

۴ـ تولنو مخري اړه لیوګړي نغرتتو مخري :

| گنه / وګړي | یوګړي | ډیرګړي |
|---|---|---|
| ۱ | زما هغه ـ هغه ـ هغی | زموږ هغه ـ هغه ـ هغس |
| ۲ | ستا هغه ـ هغه ـ هغی | ستاسی هغه ـ هغه ـ هغس |
| ۳ | د ده هغه ـ هغه ـ هغی<br>د هغه هغه ـ هغه ـ هغی<br>د دې هغه ـ هغه ـ هغی<br>د هغې هغه ـ هغه ـ هغی | د دوی هغه ـ هغه ـ هغی |

۵ـ تولنو مخریه لاار یوګړي تغسو تتو مخري :

| گنه / وګړي | یوګړي | ډیرګړي |
|---|---|---|
| ۱ | زما هوغه ـ هوغه ـ هوغی | زموږ هوغه ـ هوغه ـ هوغس |
| ۲ | ستا هوغه ـ هوغه ـ هوغی | ستاسی هوغه ـ هوغه ـ هوغی |
| ۳ | د ده رر رر رر<br>د هغه رر رر رر<br>د دې رر رر رر<br>د هغې رر رر رر | |

او همداسی د دویم ټوک پیرګړي هم اوړون مومی . دادي د تول – ځانګړنومځرو دپوره ځرګندتیا لپاره څو بېلګېزي غونډلی (جملی) وړاندي کوو :

ایمل : زما زوي ناروغ دي .

خوشال : زما هغه هم ناروغ دي .

ایمل : زمازوي ښوونځی ته ځی .

خوشال : زمادي لا کوچنی دي .

ایمل : زما وراره ښوونځی ووایه .

خوشال: زما هغه هم ووایه .

ایمل : زما ماما اس واخیست.

خوشال : زما هغه هم واخیست .

ایمل : زماورور ځلمی ته یو لیکی ورکړ .

خوشال: زماده هم هغه ته یو لیکی ورکړ – زما هغه هم هغه ته یولیکی ورکړ .

ایمل : زمالیکی ځلمی واخیست.

خوشال : زما دازمري واخیست – زما هغه زمري واخیست – زما داهم ده واخیست –
زما هغه هم هغه واخیست .

ایمل : زما ورځنی ګټه سل افغانی ده .

خوشال : زمادادوه سوه افغانی ده .

ایمل : دده کور لري دي .

خوشال: دده دا نږدي دي – د ده هغه هم لري دي .

ایمل : دهغه مور ناروغه ده .

خوشال : دهغه هغه هم ناروغه ده – دهغی هغه هم ناروغه ده .

ایمل : ددي ورور زما ټولګیوال دي .

خوشال : ستادي بیا زما ټولګیوال دي .

ایمل : زما وروېلار مړه دي •

خوشال : ستا هغه ژوندي دي •

ایمل : زما ورورېلار کوم رسمي کار نه کاوه •

خوشال : زما هغوي هم نه کاوه (زما دوي هم نه کاوه)•

ایمل : زموږ کلی له ښاره لري دي •

خوشال : زموږ دا هم له ښاره لري دي •

ایمل : زموږ هغه دومره لوي نه دي •

خوشال : زموږ دا ستاسي له هغه څخه لیر لوي دي •

ایمل : د دویم ټولګي شاګردانو کتابونه نه دي اخیستي •

خوشال : د لومړي ټولګي هغوي هم نه دي اخیستي •

ایمل : د دریم ټولګي شاګردانو خپل کتابونه بیرته ورکړي دي •

خوشال : د څلورم ټولګي هغوي خپل هغه بیرته نه دي ورکړي •

## لومړي کړاوونه (تمرينونه)

۱ــ پښويه يا ګرامر د ژبپوهنې کومه څانګه ده او له څه نه غږيږي ؟

۲ــ پښويه د څه لپاره لوستل کيږي ؟

۳ــ پښويه کومې څانګې رااخلي ؟

٤ــ غږ پوهه څه ته وايي ؟

۵ــ د ژبې لومړني ساده توکونه کوم دي ؟

٦ــ د پښتو ارزښتناک غږونه يا آوازونه پر څو ډلو ويشل کيږي ؟

۷ــ نيمواک آوازونه څو دي او څنګه پيژندل کيږي ؟

۸ــ خچ څه ته وايي او پر څو ډوله دي ؟

۹ــ ايا خچ په ماناکې ونجون (بدلون) راوړلای شي ؟

۱۰ــ دا لاندې ټوټه په غږيزه (فونيميکه) ابيڅې وليکئ او خچونه يې نښه کړئ !

داخو جوته او منلې خبره ده چې پښتو د پښتونخوا يوه بډايه او لرغونې ژبه ده چې د زرګونو کلونو په اوږدو کې پرې پوهول راپيول شوي دي . ډير پوهان او ليکوال پکې منځ ته راغلي دي . که څه هم ډيري توده سړې يې ليدلې دي ، خو بيا هم ديوې غښتلې ژبې په توګه کروړ ه پاتې شوې او په هر تورتم پسې يې رڼا راغلې ده . دا په ټينګه ويلای شو چې نن سبا پښتنې ټولنه راخوځيدلې ده او له دې خوځون سره به يې ژبه هم هرو مرو مخ پر وړاندې درومي .

## دويم كراوونـــــه

۱ــ كرپوهه له څه نه غزيږي ؟

۲ــ كر پوهه لومړي پركومو دوو څانګو ويشل كيږي ؟

۳ــ داوړيد ونو كرپنو څانګه كومى بحرخى را اخلى ؟

٤ــ نو مګر پوهه له څه نه غزيږي ؟

٥ــ دنوم اوړون ( اسمى ګردان ) اړخونه كوم دي ؟

٦ــ نومځري ( ضمير ) دڅو اړخو له مخى اوړون مومى ؟

۷ــ نوم څه ته وايى او كومى څلور بڼى را اخلى ؟

۸ــ څيز نوم او ستاينوم سره څه توپير لري ؟

۹ــ نومځري څه ته وايى او په پښتو كى پرڅو ډ لو ويشل كيږي ؟

۱۰ــ په لاندي تړښـه كى هر ډول نوم ښيـه كړي ، او ونوموئ :

يارك له ما څخه يو ليكى وغوښت ، خو ما تري وژغوره ، ځكه ټولګى يى را څخه بيل دي ، په ښوونځى كى د ، د ، د اد ريم كال دي او زما د ادويم ، له يوه ټولګيوال سره يى هم چال چلند سم نه دي ، دي خورا چغلګردي او د يوه بل خبرپال ، د يوه خبره يوه ته وړي او د بل بل ته ، كله يى له يوه سره اخ وډب وي او كله يى له بل سره ، څوك تري ارام نه دي له هرچا سره چى يو ځل كښيني بيسا يى نورونه ويارا ويد وايى ، دغله په غره كى ځاي نشتـه ، پريد بوتـس سپى هم متيازي نه كوي ، هرسړي ته په كاردي چى خپل كارته پام ولري او د بل په كار كى ځان ګډ نه كړي ، وينبياران وايى :

دخواري كونډي زويه ــ خپلى روټـى ژويه !

## دکړ ګړپوهه یا دفعل صـــرف ( CONJUGATION )

په کړ ګړپوهه کې دکړ له ړاز ړاز بدلونو او اوړونو (ګردانونو) څخه خبرې کیږي ٠

کـــــــــــړ : هغه وی (لغت) دي چې د زمانې په چوکاټ کې د یو څه پیښیدنه څرګندوي ٠ داچې دکړ جاج (مفهوم) بې د زمانې له ملګرتیا نه پوهید ل کیږي نو ځکه کړ ته مهال وی (د زمانې لغت) هم وایي ٠

کړنو مووندکـــــــــی :

په پښتو کې یو کړ په مصدر (ناپاي) نومول کیږي له همدې کبله مصدر ته کړنو مووندکی وایو٠ په عربي کې یو کړ دخپل تیر مهال (ماضي) د دریم وګړي په یو ګړي ځیل (مفرده صیغه) یادیږي لکه ضرب – نصر٠ پخوا په المانې او پارسي کې کړنو مووندکی پخپله دکړ ریښه وه خو اوس په دغو دواړو ژبو کې د پښتو غوندې یو کړ دخپل مصدر په نامه نومول کیږي لکه : تون – کردن – کول ٠٠٠٠٠٠ د مصدر جوړښت او ندنه : په پښتو کې یو مصدر په یوه یو ګړیز (یومورفیمز) روستاړي (ل) پیژندل کیږي ٠ دغه روستاړي په کړولې (فعلي ریښې) پورې سیده نښلي په دې آړ (شرط) چې کړ ساده یا په بله وینا یو ګړیز یا یومورفیمزوي او که بیلښتې او تړښتې (اشتقاقي او ترکیبي) زي نو مصدري روستاړي (ل) په موندې (تې) پورې نښلي ٠ سیده په کړولې پورې لکه : موندل – وهل – خوړل په موندې پورې لکه : غوړخول اوښل – کښیناستل – پریوتل – یو ځای کول – لاسته راوستل – تود تود کیدل – نیغ نیغ کیدل پخلا کیدل یا کول ٠٠٠٠٠٠

د مصدر ندنه هم داده چې یو کړ ونوموي ، کټ مټ لکه ونه – ډبره – سړي – کندهار ٠ داچـــــې مصدر د یو څه کړنه او پیښیدنه څرګندوي نو د کړنې او پیښیدنې نوم دی نه پخپله کړ ځکه په زمانې پورې اړه نلري ٠ داچې دودیزو (عنعنې) ژبپوهانو مصدر له خپلې وییزي (لغوي) مانا سره سم دکړ د بیلا بیلو بڼو (زیږنده) او یا بنسټ بللی دی یوې سرویوله

خبره ده. د کړ ښنست هماغه کړول (فعلي ریښه) یا کړ موندنه (فعلي تنه) ده چــــــــې

پــــــه مصدر تري د (ل) پـــــه ورښلــــــــو جوړیـــــــــږي .

که مصدر په رښتیا سره د ټولو فعلي بېلونو او بڼونو اوزېږنده وای نو باید په هره بڼــه

کې روغ رمټ پاتې وای خال دا چې موږ ګورو چې یوازې کړولی (فعلي ریښه) یا موندنه (فعلي تنه)

په هره بڼه کې خپل شتوالی ساتلای شي لکه وه په وهم - وهو - وهې - وهي . - وهې

یا وواهه - واهه - وهلی دي او داسې نور وکي . له دې کبله د مصدر ریښتیاي کړنوم یا کړنوموونکی

ویل په کار دي ځکه هم ځکه یې دنده ده د (ناپای) په نامه یې یادول چې د لاتیـــــن

(INFINITIVE) اړونه ده . هم د ومره ناوړه نه ایسي ځکه یوه ناپایه او ناټاکلی

کړنه او پېښېدنه څرګندوي او ښوموي ، نه په وګړي اړه لري ، نه په زمانې او داسې نورو ګرداني

اړخونو . که د مصدر نوموونه پر کړنوم واړوو ښایي له نورو ډېرو کړنو مونو سره یې ګډ ون راشي

لکه خوړنه - خوړانه - خوړنګ - خوړونکی - خوړلی - خوړ - خوړ - خورنده - خورندي -

خوړکه او داسې نور چې د خوړل غوندي له خوړ او خور ولي (ریښي) څخه جوړ شوي دي .

پښتو مصدر د یوه نوم په توګه تل ډېرګړي نه دي او یوازې د پېر (حالت) له

مخې اوړون موم لکه ډېرو (لوستلو) ستومان ګړم یا د عبدالقادر خټک په شعر کې :

مه شه خوښ د پادشاهي پر تخت (ختلـــو)

همیشــــه یې غم کوه د (پرېوتلـــــــــو)

د کړ او ړونې توکونه او اړخونـــــــه :

یو اوړون موندلی (ګردان شوي) کړ تر ډېرو توکونو پورې په جولیز او ښکاره

ډول یا نا ښکاره ډول په خپل ځان کې ځایولای شي چې څه ناڅه د هماغو له مخې رازرازیــــن

اوړون موم او هغه توکونه دا دي :

۱- مخکړ : چې د کړ یو بشپړوونکی او پلو ټاکونکی توک (جزء) ګڼل کېږي لکه

کښېـــ - په کښېناستل او کښې وتل او ړي - په پرېوتل او پرېولل یا پرېښودل کې .

۲ــ ولی‌یا ریښه : چی د کړ رښتینی بنسټ دي لکه خوړ ــ یا خوړ ــ

په خورم ــ خورو ــ خوري ۰۰۰۰ او وخوړ ــ خوړ ای ــ خوړلی او داسی‌نورو کی ۰

ولی پردوو ډولوده : یوه لومړئ یا اوسمهال (حال) ولی لکه خور ــ اغوند ــ

بله دویمه یا تیرمهال (ماضی) ولی لکه خوړ ــ اغوست ــ دواړي ولی په ګډه دیوه راز کړ

اوړون (ګردان) بشپړوي او سترمهال کړ (مستقبل فعل) کومه جلا ولی نلري بلکه هماغه

اوسمهال ولی یا لومړئ ولی ورسره شریکه ده۰ دونه ولی پردي سربیره چی ګرد تیرمهال

کړونه تري جوړیږي داوسمهال او اوسترمهال بیچارکړونه (مجهول افعال) هم تري جوړښت

مومی ۰ کړنومونه بیا له دواړو ولیو څخه لزوه‌یرمنځ ته را ځي‌دکړنوموونکی یا مصدر جوړښت زیاتره

تیرمهال‌ولی څخه دود لري لکه خوړل ــ لیدل ــ تلل ۰ دلته لیدل له لید ــ ولی څخه

جوړ شوي چی دویمه‌یا تیرمهال ولی ــ لل کیږي او لومړئ یا اوسمهال ولی یی (وین ــ )

ده ددغو ولیو پارس انډولونه دید ــ او وین ــ دي ۰

۳ــ مونــــډ : چی دمخکړیاولی اووګړیزي پایلی (شخصی‌خاتمی) ترمنځ

نبل کوم توک په یو ځای‌کولو منځ ته راځی په بله وینا که له‌یوه تیرمهال ګردان شوي کړ څخه

وګړیزه‌یابله کومه پایله وغورځول شی ۰ پاتی برخه یی مونډ بلل کیږي ۰ په دي توګه مونډ زیاتره

دتیرمهال کړ بنسټ‌جوړوي او په اوسمهال کی په ساده ډول له صفر شره (یاولی) برابر دي لکــــه :

کښیناست ــ په کښیناستم یا کښیناستو او زبیزیدــ په زبیزیدمــ زبیزیدو وزبیزیدم ــ وزبیزدو

وزبیزیدای یا اغوست ــ په اغوستم ــ اغوسته ــ واغوست ــ ۰۰۰۰۰ کی ۰ داوسمهال مونډ

لکه څملو په څملوم ــ څملوو ۰۰۰۰۰ کی ۰ که په ځینو ګړدودوکی کښیناستلم ــ کښیناستلــــو ــ

زبیزیدلم ــ زبیزیدلو ــ وزبیزیدلو ــ او داسی نور ویل کیږي نو مونډ یی بیاکښیناستل ــ او

زبیزیدل ــ راځی ۰ البته په ځینو ګړدودونو کی دغه‌راز (ل) دمونډ ضروري توک ګڼل‌کیږي

اوغورځول یی مانیزه نیمګړتیارا ولی لکه ماویاله وکینله ما سندره وویله ماوزمه ورتله ۰۰۰ مګر

که وکینله اوولوسته وویل شی مونډونه یی هماغه کیند او لوست راځی ۰

٤ـ کړتـــــر : چې زیاتره دیوه خپلواک اواز په بڼـه دمونږ اووګړیزي پایلـــــــــس ترمنځ کله کله پیښیږي لکه زورکی په کښیناستم او پريوتم کی ٠ مونږ پرمخکړ اوولس سرپیره دځیل ( ٦ ) لیزد ( ۷ ) مهال ( ۸ ) اولیږزند چار ( ۱۲ ) ترکونه او چارونه هم را اخلو ٠

٥ـ دود : چې دکړ دڅرګندولو ډول ښیـــی لکه خبري او ناخبري (غو ښتنـــــی ـ پوښتنی ـ هیښنی ـ امري ـ ارماني ـ ګوماني ـ ټینګاري یا تاکیدي ـ شرطي هیمشنی ـ ورزدني یا اعتیادي) لکه : ما ډوډۍ وخوړه وخوړه وخوړاي ـ وخوړه ٠ اوداسی نور ٠

٦ـ ځیـــــل : چې دکړ (مسند) او کړندیاکړي (مسند الیه) ټاکه کوي ٠ په دې مانا چې کړ چاروال (معلوم) دي که بیچار (مجهول) اویا منځوال (انعکاس). چاروال لکه ببرک زمري وهی ـ زمرك وهل کیږي ـ زمرك ځان وهی ٠ په لومړي غونډ له (جمله) کـــس کړ په کړند (ببرک) استناد کوي په دویمه کی په کړي (زمرك) اوپه دریمه کی هم په کړند اوهم په کړي چې دواړه هماغه یو وګړي (زمرك) دي ٠ ځیل په جولیز اوناجولیز ډول دمونږ وتوك دي ٠

۷ـ لیز د : په دې مانا چې کړ لیږزند (متعدي) دي که نالیږزند (لازمی) لکه معنه ر سند ري وایی او سعند ر راغی ٠ لیږد په جولیز یا ناجولیز (غیر شکلی) ډول دمونږ یوه برخه جوړ وي ٠

۸ـ مهـــــال : چې دکړمهال یازماني اړیکې (ارتباط) څرګند وي په دې مانا چې کړ په کوم مهال کی پیښ شوي دی لکه څوکري ولاړ ـ څوکري ځی ـ څوکري به ولاړ شی ٠ دپښتو کړ مهالونه په ټولیز (عمومی) ډول دري دي :

۱ـ تیرمهال : چې په بشپړ ـ نابشپړ ـ لنډ او لیرویشل کیږي ٠

۲ـ اوسمهال : چې په بشپړ اونابشپړ ویشنه مومي ٠

۳ـ اوستر مهال : چې دا هم دوه ډوله لري بشپړ اونابشپړ ٠

دمهال توك په مونږ کی راځی لکه په ودریدم یا ودریدلم کی ( د ) یا ( دل ) اوپه ودریږم یا ودریږو کی ( ږ ) ٠

۹ــ وګړي یاشخص : چې کرنده یاکړي لومړي وګړي (متکلم) دي دویم وګړي (مخاطب) یادریم وګړي (غایب) ... لومړي وګړي (زه ــ موږ) ــ دویم وګړي (ته ــ تاسو) اودریم وګړي (دی ــ دوی) ، دوګړي نښې چې وګړیزه پایله بلل کیږي دکړو روستی برخې جوړوي لکه (م) او (و) په راغلم اوراغلو کې .

۱۰ــ نوزي یا جنس : چې وګړي نرینه دي که ښځینه ، په پښتو کړ کې یوائې د دویمې ولې په اوړون کې دغه توپیر کیږي لکه شینکی راغله ــ ژبې راغی چې دلته (زور) اوي نوزیز توکونه دي په دي توګه نوزیز توکله وګړیزي پایلې او ګڼې سره ګډ اوپای ته راځي .

۱۱ــ ګڼه یاعدد (افراد وجمع) : چې وګړي یوګړي (مفرد) دي اوکه ډیرګړي (جمع) ، یوګړي لکه هلک راغی ډیرګړي لکه هلکان راغلل ، ګڼه یوائې په لومړي اودویم وګړي کې توپیریږي نه په دریم کې لکه هلک ځي ــ هلکان ځي .

۱۲ــ لیږندچار یا صناعیت (کوزاتیف) دکړ هغه برخه یاتوک دي چې په مونږ کې راځي او یو لیږندکړ دویم ځلې لیږنده (متعدي) کوي لکه دپارسي په خوراندن یاخواباندن کې (ان) پښتو سمدلاسه دننګرهار ګړدود او خوشال خټک په استاد یوائې دوه لیږند چار کړونه لري لکه خوروُل (خوراندن) او ویبول (ګویاندن) ، په نورو کړونو کې دغه راز ځرګندونه یوائې د ... ییکو (اداتو) په وسیله تر سره کیږي لکه ماپرځلمي خپله خبره ومنله (من برځلمي سخن خود را قبولاندم) په دي توګه یو لیږند چارکړ دوه کرنده (فاعله) او دوه کړیه (مفعوله) لري . لکه په پورتنۍ بیلګه کې ما او ځلمي کرندونه او خبره کړی ده اوپه یو مثال کې بیا ځلمي او خبره دواړه کړي دي . ځینی حکمی لیږندکړونه بې له وییکو هم دلیږند چار دنده پرځاي کوي لکه ماوژړوله ــ ماوخندوله او داسې نور . یا داسې هم ویل کیږي : ځلمي دورخانې په خبرو راوسته مانا داچې خبري یې پرې وکړي .

۱۳ــ دنفي یانهی توک (نه) یا (مه) چې زیاتره دځکړ یا ترښتی اوبیلښتي توک ترمنځ راځي لکه : کښې نه ناست ، پابه ځید ، وانخیست ، رانغي ، مه خوره . . . . .

کړاو (تمرین ):

| را | پاڅ | ید | زورکی | ؟ |
|---|---|---|---|---|
| ۱ | ۲ | ۶ــ۷ــ۸ــ۱۲ | ٤ | ۵ــ۹ــ۱۱ |
| | | ۲ | | |

یادونه: نوزي (۱۰) په یوه بله بیلګه (راپاڅیدله) کی موموچی له ۹ــ۱۰ او ۱۱ سره ګډ ون لري . همدارنګه دنفی توك (۱۳) په (راپانه څیدله) کی راتلاي شی .

اوړونونــــــه (ګردانــونــــــه)

لومړي ــ تیرمهــال: چی له دویمی یا تیرمهال ریښی څخه دنو موړو دیالس ګونو توکونو او اړخونو په پام کی نیولو سره جوړیښت او اوړون مومی .

الف ــ له لیزند خوړ ــ دویمی ولی څخه .

۱ ــ خبــــري .

۱: بشپړ تیرمهال (مطلقه ماضی)

چاروال

| ګنــه / وګړي | یوګـــړي | ډیرګـــړي |
|---|---|---|
| ۱ | ما وخوړ ــ وخوړه<br>وخوړل ــ وخـوړي | موږ وخـوړ ــ وخوړه<br>وخوړل ــ وخوړي |
| ۲ | تا وخوړ ــ وخـوړه<br>وخوړل ــ وخوړي | تاسی وخوړ ــ وخوړه<br>وخوړل ــ وخوړي |
| ۳ | ده ــ دې وخوړ ــ وخوړه<br>وخوړل ــ وخــــوړي | دوی وخوړ ــ وخــــوړه<br>وخوړل ــ وخـــوړي |

بیچار

| گڼه / وګړي | یوګــړي | ډیرګــــــړي |
|---|---|---|
| ۱ | زه وخوړل شــو م | مو ږ وخوړل شـــو |
| ۲ | ته وخوړل شــوې | تاسی وخوړل شوئ ـ سواسـت |
| ۳ | دی وخوړل شـــو<br>دا وخوړل شـــوه | دوي وخوړل شـــــول<br>دوي وخوړل شـــــو ې |

ښکاره

| گڼه / وګړي | یوګــړي | ډیرګــــــړي |
|---|---|---|
| ۱ | ما ځان وخـــوړ | موږ ځان وخوړ ـ ځانونه وخو ړ ل |
| ۲ | تا ځان وخـــوړ | تاسی ځان وخوړ ـ رر رر |
| ۳ | ده ـ دې ځان وخړ | دوي ځان وخوړ ـ رر ر |

یادښت : لکه څنګه چې موږ ا سولیدل په تیرمهال کې چاروال کړ دبیچارکړ غونډې دکړي (مفعول ) تابع دي نه دکړند لکه ماخټکې وخوړ ـ ما خټکې وخوړل ـ ما هندوانــــــه وخوړه ـ ما هندوانــې وخوړې ... داچې ځینې بهرنی پښتوپوهان دپښتو لیږندتیرمهال کړ (متعدي ماضي فعل ) تل بیچار (پاسیف ) بولی . د دوکتور تزي په وینا یوه بی سرویوله خبره ده ځکه چاروال لیږندیی له بیچار هغه سره توپیرلري او هغه داچې دکړند پخپله دکړ ایښی (مسندالیه) دي . او کړند پیرهم بنیي نوباید داسې وویل شي چې دپښتو دتیرمهال چاروال لیږندکړ (ماضي متعدي معلوم فعل ) پایلی له کړي (مفعول ) سره سمون لري .

۲ : نابشپړتیرمهـــال (همیشنی ماضي ) : نابشپړ تیرمهال دبشپړوالی (مطلقیت ) له (و ) پرته نورد بشپړ هغه غونډې جوړښت موږی بیچار یې دبیچارکړ نوم په لنډه ون (خوړ ل ) دمرستیالکړ (کیدل ) په ملګرتیا جوړیږي اووګړیزي پایلی هم په دغه مرستیال کړپوري نښلی :

چاروال

| گڼه / وګړي | يوګـــړي | ډيرګـــړي |
|---|---|---|
| ١ | ماخوړ ــ خوړه ــ خوړل ــ خوړي | موږ خوړ ــ خوړه ــ خوړل ــ خوړي |
| ٢ | تاخوړ ــ خوړه ــ خوړل ــ خوړي | تاسې رر رر رر رر |
| ٣ | ده ــ دي رر رر | دوي رر رر رر رر |

بيچار

| گڼه / وګړي | يوګـــړي | ډيرګـــړي |
|---|---|---|
| ١ | زه خوړل کيدم | موږ خوړل کيـــــدو |
| ٢ | ته خوړل کيدي | تاسې خوړل کيدئ ــ کيدأست |
| ٣ | دي خوړل کيـــده<br>دا خوړل کيــــده | دوي خوړل کيده ــ کيـــدل<br>دوي خوړل کيدې ــ کيدلـــې |

منخوال : ماخان خوړ ــ موږ ځان خوړ ........

٣ : روز دنی (اعتيادي) تيرمهال : داهغه رازکړدي چې دهميشه والی ترڅنګه د روز دتيا (اعتيادي) جاج (مفهوم) هم را اخلی په دې توګه داراز کړته روزدنی، هميشنی کړ هم وبلاي شو . له هس عادي هميشنی کړ سره يې توپيردا چې ترکړ دمخه پري د (به) وييکی هم زيا تيزي .

چاروال

| يوګـــړي | ډيرګړي |
|---|---|
| مابه خوړ ــ خوړه ــ خوړل ــ خوړي | موږ به خوړ ــ خوړه ــ خوړل ــ خوړي |
| تابه رر رر رر رر | تاسو به رر رر رر رر |
| ده ــ دې به رر رر رر | دوي به رر رر رر رر |

| | | ډیرګـــړي | یوګـــړي |
|---|---|---|---|
| بیچار | ۱ | موږ به خوړل کیدو | زه به خوړل کیدم |
| | ۲ | تاسې به خوړل کیدئ ـ کیداست | ته به خوړل کیدې |
| | ۳ | دوي به خوړل کیده ـ کیدل | دی به خوړل کیده |
| | | دوي به خوړل کیدې ـ کیدلې | دا به خوړل کیده |

منځوال لکه دا به ځان خوړ ......

٤ : لنډ تیرمهال (قریبه ماضي) : د دې مهال کړ د چار او پیښنګ له مخې کله داسې وي چې په تیرمهال کې یو څیز بشپړ شوي وي او یا دا چې تر اوسمهال پورې هم څه اوږدوالی موندلی وي • رغیدنګه یې دا ډول دی چې له بیچارکړ نوم (مفعولي صفت) ((خوړلی)) سره مرستیالکړ (ول) په اوسمهال کې اوړون مومي • په بیچارکې یې پردې سربیره دویم مرستیالکړ (کیدل) یا (شول) ورسره هم اوړون کوي او د دې لپاره چې وګړیزې پایلې په دواړو مرستیالکړونو پورې نښلي نو دا اسانتیا لپاره د بیچار کړ نوم پایلې ته اړ تیا نه پاتیږي همداراز په لړ تیرمهال بیچارکړ کې هم د بیچارکړ نوم (خوړلی) با یغوړځي او د (خوړل) په بڼه پاتیږي چې ځینې دودیز پښتو پوهان (ګرامرپیـنیان) یې له (مصدر) سره ګډوي او اشتباه کوي •

| | یوګـــړي | ډیرګړي |
|---|---|---|
| ۱ | ما خوړلی دی ـ خوړلې ده ـ خوړلی دی ـ خوړلې دی • | موږ خوړلي دي ـ خوړلې دي ـ خوړلې ده ـ خوړلې دي ـ خوړلی دی • |
| ۲ | تا رر رر رر رر | تاسې رر رر رر رر رر رر |
| ۳ـ | ده ـ دې رر رر رر رر | دوي رر رر رر رر رر رر |

| | يوگــــــــړي | ډيرگــــــړي |
|---|---|---|
| بيچار ۱ | زه خوړل شوي– شوې يم | موږ خوړل شوي– شوې يو |
| ۲ | ته خوړل شوي – شوې يې | تاسې خوړل شوي – شوې يئ، یاست |
| ۳ | دی خوړل شوی دی<br>دا خوړل شوې ده | دوي خوړل شوي دي<br>دوي خوړل شوې دي |

منحوال لکه ماخان خوړلی دي ·······

٥ : لرتيرمهال ( بعيد ماضي ) : د لرتيرمهال کړ ته هغه وخت اړ تيا پريوځي چې وروسته
تري بشپړ تيرمهال يا لنډ تيرمهال کړ پيښ شوي وي . یا په بله وینا . لرتيرمهال کړ يوله
دغو نورو ډولو تر کاريدنې ( استعمال ) وروسته کارول کيږي لکه چې وايي :

ته پرلسو بجو راغلی ( بشپړ ) اوزه پرنهو بجو راغلی وم ( لـــر )

يا : ته پرلسو بجو راغلی يې ( لنډ )

د لرتيرمهال او ړون نورد لنډ هغه غونډي دي خو د لته ورسره مرستيالکړ ( ول ) هم په لـره
زمانه کی اوړون مومي:

| | يوگــــــړي | ډيرگــــــړي |
|---|---|---|
| چاروال ۱ | ماخوړلی و – خوړلی وه –<br>خوړلی وو – خوړلی وې | موږ خوړلی و – خوړلی وه – خوړلی وو<br>خوړلی وې . |
| ۲ | تا رر رر رر رر | تاسې رر رر رر رر رر رر |
| ۳ | ده – دې رر رر رر رر | دوي رر رر رر رر رر رر |

| | يوگــــــړي | ډيرگــــــړي |
|---|---|---|
| ۱ | زه خوړل شوي– شوې وم | موږ خوړل شوي– شوې وو |
| ۲ | ته رر رر رر | تاسې رر رر رر وي – واست |
| ۳ | دي خوړل شوي و<br>دا خوړل شوې وه | دوي خوړل شوي وو<br>دوي خوړل شوې وې |

منځوال لکه ماځان خوړلی و ..............

٦ : گومانی تیرمهال (احتمالی یا شکیه ماضی) : هغه کړ ته وایی چی کیدنګ یی گومانی او اړنګمن (مشکوک) وي . رغیدنه یی د اسی کیږي چی لهه بیچارکړ نوم (خوړلی) یا (خوړل) سره (به) ملتیا موږی او په چاروال کی یوازی د (ول) مرستیالکړ یوازینی بڼه (وي) او په بیچارکی ورسره (شول) او د (ول) ټولی اوسمهال بڼی اوړون کوي . او د (وي) په بڼه یوازی په دریم وګړي کی (ګوند، ي) یا (ښایی) غوندي گومانی وییکی هم ورسره ټولیز ډول مل کیدای شی .

| | | یوګــــړي | ډیرګـــړي |
|---|---|---|---|
| چاروال | ١ | ما به خوړلی — خوړلی — خوړلی — خوړلی وي | موږ به خوړلی — خوړلی — خوړلی — خوړلی وي |
| | ٢ | تا به رر رر رر رر | تاسی به رر رر رر رر |
| | ٣ | د ه — دې به رر رر رر | دوي به رر رر رر رر |

| | | یوګــــړي | ډیرګـــړي |
|---|---|---|---|
| بیچاړ | ١ | زه به خوړل شوي — شوي یم | موږ به خوړل شوي — شوي یو |
| | ٢ | ته به رر رر رر یی | تاسی به رر رر رر یی — یاست |
| | ٣ | دي به خوړل شوي وي | دوي به خوړل شوي وي |
| | | دا به خوړل شوي وي | دوي به خوړل شوي وي |

منځوال لکه : ما به ځان خوړلی وي .....

۷ : ارماني تیرمهال (تمنایي ماضي) : چې دیوه ارمان ښرګندونه کوي او د دود له مخې په بشپړ تیرمهال ، نابشپړ تیرمهال ، نژدې تیرمهال او ګوماني تیرمهال پورې اړه لري :

۱ـ ارماني بشپړ تیرمهال (تمنایي مطلقه ماضي) چې د رغیدنې له مخې په بشپړ تیرمهال اړه جاج او مرخې (مفهوم او مطلب) له مخې په اوسمهال پورې اړه لري جوړیدنه یې د بشپړ تیا (مطلقیت) و ـ په مختاړي کواو او د چاروال لپاره د بیچارکړ نوم (مفعولي صفت) په اوږ دو لو او د بیچار لپاره د پای په غوړ ځولو او د مرستیالکړ (شول) د بیچارکړ نوم په اوږ دو لو ترسره کیږي . دغه رازیې د زیاتې ښرګندتیا لپاره تر اینې (مسندالیه) د مخه یا وروسته د (کاشکې) وییکې دیوه نحوي توك په توګه هم ملګري کیدای شي .

| | یوګړي | ډیرګړي |
|---|---|---|
| چاروال ۱ | کاشکې ما وخوړ ای | کاشکې موږ وخوړ ای |
| ۲ | کاشکې تا وخوړ ای | کاشکې تاسې وخوړ ای |
| ۳ | کاشکې ده ـ دې وخوړ ای | کاشکې دوي وخوړ ای |

| | یوګړي | ډیرګړي |
|---|---|---|
| بیچار ۱ | کاشکې زه وخوړ ل شوای | کاشکې موږ وخوړ ل شوای |
| ۲ | کاشکې ته وخوړ له شوای | کاشکې تاسې وخوړ ل شوای |
| ۳ | کاشکې دي ـ دا وخوړ ل شوای | کاشې دوي وخوړ ل شوای |

منځوال لکه : کاشکې ما ځان وخوړ لای .........

۲ـ ارماني نابشپړ تیرمهال : چاروال یې بې د بشپړ تیا (مطلقیت) له و ـ څخه د بشپړ هغه غونډ یځ جوړیږي او بیچار یې بې له دغه (و) او مرستیال کړ په بدلو لو (شول پرکیدل) د بیچار بشپړ هغه غونډي راځي .

چاروال

| | یوګـــــړي | ډیرګـــــړي |
|---|---|---|
| ١ | کاشکی ما خوړ اي | کاشکی موز خوړ ا ي |
| ٢ | کاشکی تا خوړ اي | کاشکی تاس خوړ اي |
| ٣ | کاشکی ده ـ دي خوړ اي | کاشکی دوي خوړ اي |

بیچار

| | یوګـــــړي | ډیرګـــــړي |
|---|---|---|
| ١ | کاشکی زه خوړل کیدا ي | کاشکی موز خوړل کیدا ي |
| ٢ | کاشکی ته خوړل کیداي | کاشکی تاس خوړ ل کیدا ي |
| ٣ | کاشکی دي ـ دا خوړل کیداي | کاشکی دوي خوړل کیدا ي |

منځوال لکه : کاشکی ما ځان خوړلاي ..........

٣ـ ارمانی لرتیرمهال ( تمنایی بعیده ماضی ) چاروال داسی جوړیږي چی په بیچارکړ نوم( مفعولی صفت)پسی د مرستیالکړ (ول ) بیچارکړ نوم او زد ( واي ) راشی او بیچار یی د بیچارکی نوم په لنډ ولو او ( شول ) په زیاتو راضح ته کیږي ٠

چاروال

| | یوګـــــړي | ډیرګـــــړي |
|---|---|---|
| ١ | کاشکی ماخوړلی ـ خوړلی ـ خوړلی ـ خوړلی واي | کاشکی موز خوړلی ـ خوړلی ـ خوړلی ـ خوړلی ـ خوړلی ـ خوړلی واي ٠ |
| ٢ | کاشکی تا رر رر رر | کاشکی تاس رر رر رر |
| ٣ | کاشکی ده ـ دي رر رر رر | کاشکی دوي رر رر رر |

٢ــ اړوتی نابشپړ تیرمهال (شرطیه استمراري‌ماضی) لکه: که ما خوړ ــ که موږ خوړ یا که ما خوړلای ــ که موږ خوړلای ....

٣ــ اړوتی لنډ تیرمهال (شرطیه قریبه ماضی) لکه: که ما خوړلی دی ــ که موږ خوړلی دي یا ــ که ما خوړلی وي که موږ خوړلی وي ....

٤ــ اړوتی لر تیرمهال (شرطیه بعیده ماضی) لکه که ما خوړلی و ــ که موږخوړلی و یا ــ که ما خوړلی وي ــ که موږ خوړلی وي ......

په دې توګه هر اړوتی تیرمهال په ځرمه (ضمنی) ډول ګومانی ــ ارمانی ــ هیښنی ....... هم کیدای شی.

٩: توانی تیرمهال (امکانی یا اقتداري ماضی): چې دیوه کړ کیدون (امکان) یانه کیدون تري ځرګندیږي. په پښتو کې په ساده جولسیز ډول یوازې بشپړ تیرمهال او نابشپړ تیرمهال توانی کیدای شی او همدغه دوه ډوله تیرمهالونه په ځرمه توګه نور تیرمهالونه هم را اخلــــــی. رغیدنګ یې دبیچارکړ نوم دپای غبرګغږ په اوږدولو (خوړلای یا خوړای) او ورسره دمرستیالکړ (شول یا کیدل یادواړو) په ګردانولو تر سره کیږي.

١ــ توانی بشپړ تیرمهال. لکه: ما وخوړلای شو ــ وخوړای شو ــ تاوخوړلای شو ــ وخوړای شو ......

٢ــ توانی نابشپړ تیرمهال. لکه: ما خوړلای شو ــ خوړایشو ــ تا خوړلای شو ــ خوړای شو ......

اعتیادي: لکه: مابه‌خوړلای شو ــ خوړای شو ــ تابه خوړلای شو ــ خوړای شو.

١٠: ټینګاري تیرمهال (تاکیدي ماضی): چې دکړ دترسره کولو یانه‌ترسره کولو ټینګار (تاکید) ځرګندوي او یوازې په بشپړ اونابشپړ تیرمهال کې راتلای شی:

١ــ ټینګاري بشپړ تیرمهال چې له بیچارکړ نوم سره د (به)، (و) یا (وای) په ملګري کولو جوړیږي لکه: ما به خوړلی وی‌امابه خوړلی وای اویا خوړلی به می و. خوړلی‌بمی‌وای.

٢ــ ټينګاري نابشپړ تيرمهال چې له اعتيادي سره په اهنګ کې توپير لري لکه :

مابه خوړ يا مابه خوړ لاي‌یاخوړ اي . کله کله بويه يا ( بايد ) هم په سرکې راتلاي شي او دپاي

ليکنښه يې ندائيه راځي .

ــ هيښنې تيرمهال ( تعجبي ماضي ) . چې په هيښتيا ( تعجب يا تحير ) سره

څرګنديږي . دا‌راز کړ يواځې په اهنګ کې له خبري‌هغه سره توپيريږي ليکنښه يې يوه بلنښنه

(ندائيه) ده .

بيلګه لکه : ماوخوړ ! تاوخوړ ! .......

١١ : پوښتنې تيرمهال ( استفهامي ماضي ) چې ديوه کړ ن پېښيدنه يا نه پيښيدنه پوښتنې

دا هم له خبري‌کړ سره يواځې په اهنګ کې توپير موس په دي توګه چې دخبري کړ اهنګ

له‌عادي‌ځج يا اهنګ سره او‌ا‌رپيل مومي او تيټ پاي ته رسي اودپوښتنې بيا له يوه زيات‌پياوړي

ځج ياپه بله وينا له‌يوه هوار اهنګ سره پيل مومي اوپه پاي کې لوړيږي . پوښتنې کړ په

بشپړ تيرمهال . نابشپړ تيرمهال . لنډ تيرمهال لرنيرمهال اوتوانې تيرمهال کې راتلاي‌شي

ليکنښه يې پاي‌ته‌يوه‌پوښتنښه ( ؟ ) ده .

١ــ پوښتنې‌بشپړ تيرمهال لکه : ما وخوړ ــ تاوخوړ .......

٢ــ پوښتنې نابشپړ تيرمهال لکه : ما خوړ ــ تاخوړ .......

٣ــ پوښتنې لنډ تيرمهال لکه : ماخوړلی دي ــ تاخوړلی دي .....

٤ــ پوښتنې لرتيرمهال‌لکه : ما خوړلی و ــ تاخوړلی و ......

٥ــ پوښتنې توانی تيرمهال لکه : ما وخوړ لاي شو ــ تا وخوړ لاي شو .....

لکه : ماوخوړ لاي شو ــ تا وخوړ لاي شو......

يا : ما خوړ لاي شو ــ تاخوړ لاي شو ......



ب ـ ناليزندكړ (راتلل) له بشپړ اندو (سولتيفو) دويمو وليـــو راتل ـ (رات) • راغل ـ (راغ) څخه راغل ـ جوړيزي دبشپړ (مطلق) او راتل ـ دنابشپړ (غيرمطلق) كړ ولن هم بلل كيـــزي :

١ : بشپړ تيرمهال (مطلقه ماضى) :

اـ خبـــري : چې له راغل ـ يا راغ ـ ريښى څخه جوړ ښت او اوړ و ن مومى •

| | يوګړي (مفرد) | ډيرګړي (جمع) |
|---|---|---|
| ١ | زه راغلم | موږ راغلو |
| ٢ | ته راغلى | تاسو راغلئ ـ راغلاست |
| ٣ | دي راغى (راغلـــئ) | دوي راغلـــل |
| | دا راغلـــه | راغلى (راغللـــيى) |

٢ـ لنډ تيرمهال چــــې دليزندكړ غوندي دبيچاركړ نوم له اندول (راغلى) څخه دمرستياالكړ (ي ـ) او (د ـ) په ملګرتيا جوړيزي او ګردانيزي •

| يوګـــړي | ډيرګـــړي |
|---|---|
| زه راغلى ـ راغلى يم | موږ راغلى ـ راغلى يـــو |
| ته راغلى راغلى يـــى | تاسو راغلى راغلى يئ ـ ياست |
| دي راغلى دي | دوي راغلى دي |
| دا راغلى ده | دوي راغلى دي |

٣ـ لرتیرمهال ( بعید ماضی ) • چې له لنډ تیرمهال سره په مرستیالکړ کې تویبیر مومي هغه داچې دلته د ( ول ) ولی ( و ـ ) په کار لوېږي •

| ډیرګــړي | یوګــړي |
|---|---|
| مرز راغلی ـ راغلي وو • | زه راغلی ـ راغلی وم • |
| تاسې راغلی ـ راغلي وئ ـ واست • | ته راغلی ـ راغلی وې • |
| دوي راغلــــــــــــي وو • | دی راغلــــــــی و • |
| دوي راغلی ـ راغلي وي • | دا راغلی ـ راغلې وه • |

٤ـ ناېشپړ تیرمهال ( همیشنی یا استمراري ماضی ) چې د راغلي ـ له بشپړاندي ملګري ولی ( راتل ـ ) یا ( راتا ) څخه جوړ ښت او اوړون موږ په دې توګه چې وګړیزي پایلی په هغو ولې پوري نښیده نیلی :

| ډیرګــړي | یوګــړي |
|---|---|
| موږ راتلــــو • | زه راتلم • |
| تاسې راتلئ • ـ راتلاست • | ته راتلې |
| دوي راتلــل • | دی راته ـ راتلو ـ راتلی • |
| دوي راتلې ـ راتللې | دا راتلــــه |

٥ـ روزنی تیرمهال ( اعتیادي ماضی ) چې له ناېشپړ تیرمهال څخه د ( به ) وییکی زیات لوي لکه : زه به راتلم ـ ته به راتلې • • • • • • •

٦ـ ارماني تیرمهال ( تمنایی ماضی ) چې په بشپړ ـ ناېشپړ او لر تیرمهال پوري اړه لري او د مرخی او جاج ( مفهوم ) له مخې زیاتره په اوسمهال پوري اړه نیسی • بشپړ یې له ناېشپړ سره د بشپړ تیا ( مطلقیت ) و ـ تویبیریږي بشپړ یې لکه ( راغلی ای ) یا ( ولاړ ای )

اونابشپړ يې لکه ( تللاي ) • لري د اکړ نوم دغبرګغز د اوږد و لو پرځاي د مرستيالکړ ( ول )
هغه پراوږ د دغبرګغز اړ زي • دپوره څرګندتيا لپاره د د رووا ړ و ټولو په سر کې د ( کاشکی )
ويېکې ، دېوه نحوي توك په توګه هم راوړل کېداي شي •

(۱) بشپړ اړمانې :

| | يوګـــړي | ډيرګـــړي |
|---|---|---|
| ۱ | کاشکې زه راغللاي ـــ راغلاي | کاشکی موږ راغللاي ـــ راغلاي |
| ۲ | کاشکې ته رر رر | کاشکی تاسو رر رر |
| ۳ | کاشکې دي ـــ دا رر رر | کاشکی دوي رر رر |

( ۲ ) نابشپړ اړمانې :

| | يوګـــړي | ډيرګـــړي |
|---|---|---|
| ۱ | کاشکې زه راتللاي ـــ راتلاي | کاشکی موږ راتللاي ـــ راتلاي |
| ۲ | کاشکې ته رر رر | کاشکی تاسو رر رر |
| ۳ | کاشکې دي ـــ دا رر رر | کاشکی دوي رر رر |

(۳) لراړمانې :

| | يوګـــړي | ډيرګـــړي |
|---|---|---|
| ۱ | کاشکې زه راغلی ـــ راغلی واي | کاشکی موږ راغلی ـــ راغلی واي |
| ۲ | کاشکې ته رر رر رر | کاشکی تاسو رر رر |
| ۳ | کاشکې دي ـــ دا رر رر | دوي رر رر رر |

| يوګـــړي | ډيرګـــړي |
| --- | --- |
| ګوندي ــ بنايي يالكه چي زه راتلم | ګوندي ــ بنايي يالكه چي موز راتلو |
| رر رر رر ته راتلى | رر رر رر تاسي راتلى ـ راتلاست |
| رر رر رر دي راتلو ـ راته | رر رر رر دوي راتلل ـ راتله |
| رر رر رر دا راتله ـ راتله | رر رر رر رر راتللى ـ راتلى |

روز دني اكه : زه ګوندي ــ بنايي يالكه چي زه به راتلم ــ ته به راتلى ۰۰۰۰۰۰۰

(۳) لنډه ګومانـــ د بشپړ ګوماني غونډي په (لكه چي) يا (به) له خبري هغه سره توييږـــــزي ۰

| يوګـړي | ډيرګړي |
| --- | --- |
| لكه چي زه راغلى ــ راغلى يم | لكه چي موز راغلى ــ راغلى يو |
| رر رر ته رر رر رر يى | رر رر تاسي رر رر يى ـ ياست |
| رر رر دي ــ دا رر رر وي | رر رر دوي رر رر وي |

يا ـ زه به راغلى يم ۰۰۰۰۰

( ٤ ) لـــرګوماني چي له خبري هغه سره د (ګوندي) ـــ (بنايي) (لكه چي) يا (به) په سرباري كولو توييږيزي لكه ګوندي زه راغلى وم ـــ زه به راغلى وم ۰

۹ــ تينګاري تيرمهال (تاكيدي ماضي) ۰ چي بشپړ ــ نابشپړ اولر راتلاي شي او د موخي اوجاج له پلوه زياتره په اوسمهال پوري اړه لري ۰ او د پوره څرګندتيا لپاره يي په سركي (بويه) يا (بايد) هم ملګري كيږي ۰

(۱) بشپړ تينګاري د به يابايد په مختاړي كولو او د (اي) په روستاړي كولو له (راغلل ــ) يا (راغل ــ) څخه جوړيږي لكه زه به راغللاي ــ راغلاي يازه بايد راغللاي ــ راغـــــلاي ۰

(۲) نابشپړ تېنګاري چې د به یا باید په مختاړي کولو او (اي) په روستاړي کولوله (راتلل ــ) یا (راتل) څخه جوړیږي لکه :

زه به راتللاي ــ راتلاي یا زه باید راتللاي ــ راتلاي ۰۰۰۰۰۰ او یا راتلم به ــ راتلی به او داسې نور ۰

(۳) لــر تېنګاري چې له خبري تیرمهال څخه د (به) په سرباري کولو توپیریږي لکه زه به راغلی وم ــ ته به راغلی وې ۰۰۰۰۰۰ که د (به) ځاي (باید یا (بویه) ونیسی نو بیا د (ول) کړ نوم پاي غبرګغبز لکه ارماني هغه غوندي ورسره اوز دیږي لکه زه باید راغلی واي ــ ته بویه راغلی واي چې البته په درو واړو وګړو کې یې بیا نرینه او ښځینه سره توپیر یداي شي ۰ دپاي لیکښنبه یې پلننښـه (!) راځي ۰

۱۰ ــ پوښتنې تیرمهال (استفهامي ماضي) په دې مانا چې که په هر ډول تیرمهال کې پوښتنه راشي ۰ نو پوښتنې تیرمهال بلل کیږي ۰ بشپړ لکه زه راغلم نابشپړ لکه زه راتلم لنډ لکه زه راغلی یم لر لکه زه راغلی وم او داسې پسې نور ۰

۱۱ ــ هینښـنې تیرمهال (تعجبي ماضي) چې هینښتیا تري څرګندیږي اوله پوښتنې سره یوازې په اهنګ کې توپیر مومي لکه زه راغلم! ته راغلی! اوهم داسې په نورو تیرمهالونو کې ۰

۱۲ ــ اړوتي تیرمهال (شرطیه ماضي) چې په تیرمهال کې د کوم کړ پیښیدنــه یا نه پیښیدنه په یوه اړ (شرط) پورې تړلې وي د اکړ نور ترپایه پورې د خبري هغه غوندي رغیدنګ لري خو په سرکې یې یو نحوي توك اړ وییکی (شرطیه ادات) ــ که ــ راوړ ل کیږي لکه که زه راغلم ۰ که زه راتللم ۰۰۰۰۰۰

دویم ــ داوسمهال کړ اوړون ( گــردان ) :

اوسمهال کړ داماناچې کړ هماغه مهال یا یوځه وروسته پیښیږي چې یادونه یې کیږي ، چاروال یې له لومړي ولی ( ریښی ) څخه جوړیږي اوبیچار یې له تیرمهال یا په بله وېناله دویمې ولی څخه ، چې په دواړو پښو کی وریوري تاکلی اوړونې (تصریفی) تاړي (وندونه) نښلول کیږي ، دغه تاړي داینې (مسندالیه) اود هغه د ګڼې ښرگندونه کوي نه دتوږي اومهال ، داماناچې په ناتیرمهال کی نوزي نه تویږیږي او مهال خوزیاتره پچپلی کړ ولی سره ښرگندیدنه مومی ،

الف ــ له لیږند خور ــ څخــــه :

۱ : بشپړ اوسمهال ،

۱ ــ خبري : چاروال ، چې له لومړۍ ریښی څخه زیاتره دبشپړتیا یې (مطلقیت ) ( و ــ ) په مخشاړي کولو او داړوندو نښلونو په زیاتو لو لاسته راځی :

| یوګړي ( مفرد ) | ډیرګړي ( جمع ) |
| --- | --- |
| وخورم | وخورو |
| وخوري | وخوري ، |
| وخوري | وخوري |

بیچاړ ، چې له دویمی ولی څخه دلاسته راغلی بیچار کړ نوم په لنډون اوله هغه سره دمرستیالکړ ( شول ) په اوړون جوړښت مومی :

| یوګـــړي | ډیرګړي |
| --- | --- |
| وخوړل شم | وخوړل شو |
| وخوړل شی | وخوړل شی ، |
| وخوړل شی | وخوړل شی |

منځوال لکه : ځان وخورم ......

٢- آرزوئي بشپړ او مهال ( شرطي حال ) چي له خبري بشپړ او مهال سره توپير پي پوازي دا دي چي يا شرطيه ادات (که) په سرباري کولو څرګنديږي .

چاروال لکه : که وخورم — که وخوري ....

بيچار لکه : که وخوړل شم — که وخوړل شي ....

منځوال لکه : که ځان وخورم — که ځان وخوري .....

٣- ارماني بشپړ او مهال چي د ( کاشکي ) په مخکي کولو سره د خبري هغه غوندي رغيدنـــګ ميږي :

چاروال لکه : کاشکي وخورم — کاشکي وخوري .....

بيچارلکه : کاشکي وخوړل شم — کاشکي وخوړل شي ....

منځوال لکه : کاشکي ځان وخورم — کاشکي ځان وخوري

٤- پوښتني بشپړ او مهال چي په رغيدنګ کي له خبري څخه يوازي د خج په پياوړتيا او د اهنګ په لوړتيا کي توپير لري . ليکنښه يي پوښتنښه ده :

چاروال لکه : وخورم وخوري

بيچار لکه : وخوړل شم وخوړل شي .

منځوال لکه : ځان وخورم ځان وخوري

٥- ميښتي بشپړ او مهال له پوښتني هغه څخه يوازي په اهنګ او د غزيدو کي په اکر( وضع ) بيلتون مومي لاي شي او ليکنښه يي د پوښتني پرځاي بلنښه راځي :

چاروال لکه : وخورم ! وخوري !

بيچار لکه : وخوړل شم ! وخوړل شي !

٦ـ توانی بشپړ اوسهال • چی له دویمی ولی شخه دلاسته راغلی بیچارکړ نوم دپای غبرگغږ پهاوږدولو او ورسره د (شول ) پهاوړونولو (گردانولو ) سره منځ ته راځی دچولی له مخی له بشپړ تیرمهال سره کوم توپیر نلري • په زړه پوري دا چی یی چاروال او بیچار سره یو ځای دغږیدونکی داکسر (وضعیت ) • چا پیریال او دریځ (موقعیت ) اونومځرو له مخی توپیرداي شی لکه : زه غم وخوړ ناړي شم ـ ماغم وخوړلای شی باغم ماوخوړلای شی • • •

| وگړي / گڼه | یوگړي | ډیرگړي |
| --- | --- | --- |
| ۱ | وخوړ نای شــــم | وخوړلای شـــــو |
| ۲ | وخوړلای شی | وخوړ لای شـــــی • |
| ۳ | وخوړ لای شــــی | وخوړلای شـــــی |

٧ـ امري بشپړ اوسمهال چی یوازی د دویم وگړي لپاره راځی چاروال یی له لومړي ولی شخه ساده کول او بیچار یی له دویمی ولی شخه دلاسته راغلی بیچارکړ نوم پهلنډو ن او دمرستیالکړ (شول ) په اوړون سره تر سره کیږي •

چاروال لکه : وخوره ! وخوري • !

بیچار لکه : وخوړل شه ! وخوړل شی• !

٨ـ ټینگاري یا تاکیدي بشپړ اوسمهال چی له خبريځغه سره یی توپیر یوازی د ټینگار ویــکی یا تاکیدیادات (دې ) پهورزیاتولو ترسره کیږي •

چاروال پهنومځرو سره لکه : زه دې وخورم ! ته دې وخوري • • • •

بی نومځرو لکه : ودې خورم ! ودې خوري • • • •

بیچــار : له نومځرو سره لکه : زه دې وخوړل شم ! ته دېوخوړل شی !

بی نومځرو لکه : ودې خوړل شم ! ودېخوړل شی !

٩ــ غوښتنی بشپړ اوسمهال چی دعایا ښیرا څرګندوي او یواځی په ناتیرمهال کی راتلای شی • د تینګاري هغه او کله کله د امري هغه غوندي جوړیزي خو پوره څرګند تیا یی په یوه غونډه له (جمله) کی له نورو توکونو سره کیدای شی لکه :

سردې وخورم یا سرمی دي وخورم ــ سردي وخوره یا په دغو متلو کی : نه اشه ښه ده نه ګله ــ دوي دي وخوري یو تربله (میدان) •

نه یوه ښه ده نه بله ــ دوي دي وخوري یو تربله (د هلمند ناوه)

په پښتو کی زیاتره ارکړونه په ساده اویو ستوي توګه دغوښتنی لپاره راتلای نشی او مرستیالکړونه او توکونه ورسره ملګري کیږي •

ساده لکه : ومره ! ژوه ! (زنده باد) •

ترښتی (ترکیبی )لکه : ستړي مه شی ! خوارمه شی ! هرکله راشی ! خیریوسی !

یا له (خدای ) سره : خدای دې خوار مکړه ! خدای دي وبښه ــ خدای دي ښه درسره وکړي •••

١٠ــ ګومانی بشپړ او سمهال چی دارنګ وییکو (شکیه اداتو) او غونډه له بیزو توکونو په مختاړلي ګولو له خبري هغه څخه جوړیزي •

چاروال لکه : ښایی چی وخورم ــ ګوندي وخورم ــ لکه چی وخورم ــ کیږي چی وخورم

بیچار لکه : ښایی چی وخوړل شم ــ ګوندي وخوړل شم ــ لکه چی وخوړل شم ــ

کیږي چی وخوړل شم ! •

٢ : نابشپړ اوسمهال (غیرمطلق یا استمراري چال)

١ــ خبــــري :

چاروال • چی بی له کوم مختاړي له لومړ ی کړولی سره د وګړیزو پایلو (خاتمو) په ملتیا جوړیزي لکه :

| کټه / وګړي | یوګړي (مفرد) | ډیرګړي (جمع) |
|---|---|---|
| ۱ | خوړم | خوړو |
| ۲ | خوړې | خوړي |
| ۳ | خوړي | خوړي |

بیچار ۰ چې له لنډ کړ شوي بیچار کړ نوم (خوړل) سره مرستیالکړ (کېدل) په اوسمهال کی اوړون موږ لکه :

| کټه / وګړي | یوګړي | ډیرګړي |
|---|---|---|
| ۱ | خوړل کېږم | خوړل کېږو |
| ۲ | خوړل کېږې | خوړل کېږئ |
| ۳ | خوړل کېږي | خوړل کېږي |

منځوال لکه : ځان خوړم ۰۰۰۰۰۰

۲ـ اړوتي نابشپړ اوسمهال چې داړوییکی یا شرطیه ادات (که) په مختاړي کولو له خبري مخه څخه جوړیږي :

چاروال لکه : که خوړم ـ که خوړې ۰۰۰۰۰۰

بیچار لکه : که خوړل کېږم ـ که خوړل کېږي ۰۰۰۰

منځوال لکه : که ځان خوړم ـ که ځان خوړې ۰۰۰۰۰

۳ـ ارمانی نابشپړ اوسمهال چې دجولی له مخی له ارمانی نابشپړ تیرمهال سره کوم توپیر ناري لکه کاشکی ما خوړلی شواي ، په دې توګه یې له نورو ارماني (تیرمهال یا اوسمهال) ډولونو سره د چاروال او بیچار توپیر د ډریخ او نومځرو له مخی کیداي شی ۰

۴ـ یونستی نابشپړ اوسمهال له بشپړ تیا یی یا مطلقه (و ـ ) پرته نور د یونستنی بشپړ اوسمهال غوندي رغیدنګ لري لکه خوړم ۰

٥ــ هینبنی بیاله پوښتنی سره یوائی په آهنګ اوچاپیریال سره تویرپیداي شي اوبه لیکې کي په بلنبښــه لکه : خوږم !

٦ــ ګومانی نابشپړ اوسمهال له بشپړ تیاپې (و ــ ) پرته نور دبشپړ هغه غوندي رغیزي لکه ګوندي خوږم یا ګوندي خپل سرخوږم ......

٧ــ توانی نابشپړ اوسمهال دجولي له مخې له توانی نابشپړ تیرمهال سره ګوم توپیرنلري اوبرائې دجاج اوموخې (مفهوم اومقصد) له مخې تري توپیرپیداي شي اوهماغسې یې دچاروال اوبیچار بیلتون دنومخرو په اوښتون سره رائې لکه ما خوږلی شواي ــ زه خوږلی شواي ...

٨ــ امري نابشپړ اوسمهال چې کټ مټ دبشپړ هغه غوندي یوائې د دویم وګړي لپاره رائې لکه خوره ! خوري ! ......

٩ــ ټینګاري یا تاکیدي نابشپړ اوسمهال چې د (دي) په ملتیا په دي وروستــــه پول جوړیدنګ موس .......

چاروال ـ له نومخرو سره لکه ــ زه دي خوږم ــ ته دي خوري ـ

بې نومخرو لکه : خوږل کیږم دي ــ خوږل کیږي دي ! (١)

١٠ــ غوښتنی نابشپړ اوسمهال چې ډیرلږ دودلري او هغه هم په ځینو ګړو او بیاپه یوه غونډه له (جمله) کې له نورو توکونو سره لکه :

خدای دي لره ... خدای دي له هري بلا ساتــــه !

خدای دي مه بښه ــ خدای دي مه خواروه !

خدای دي مه کموه !ــ اوداسې پسې نور ...

( ١ ) بیچار ــ له نومخروسره لکه زه دي خوږل کیږم ــ ته دي خوږل کیږي

بې نومخرو لکــــه خوږل کیږم دي ــ خوږل کیږي دي ...

ب ـ له نالیزنده خ ـ ـ ولاړ ـ او تلل کي یا تل ـ څخه :

١ : بشپړ اوسمهال ، چې له دویمې ولې ( ولاړ ـ ) سره مرستیالکړ ( شول ) اوړون مومي ،

١ ـ خبري :

| گڼه / وگړي | یوگړي ( مفرد ) | ٢ یرگړي ( جمع ) |
|---|---|---|
| ١ | ولاړ شـم | ولاړ شـو |
| ٢ | ولاړ شـې | ولاړ شـئ |
| ٣ | ولاړ شـي<br>ولاړه شـي | ولاړ شـي<br>ولاړې شـي |

٢ ـ اړوتي بشپړ اوسمهال ، چې داړوبیکي یاشرطیه ادات ( که ) په مختاړي کولو دخبري هغه غوندي رغیدنه مومي لکه : که ولاړ شم ـ که ولاړ شي ......

٣ ـ ارماني بشپړ اوسمهال چې د ټولو وگړو لپاره له ( ولاړ ـ ) څخه دجوړ شوي کړ نوم ( ولاړ لی ) په اوز د ولو جوړیږي او د پوره څرگند تیا لپاره یې د ( کاشکې ) ویکي هم په سرکې راځي او د جولي له مخې له ارماني بشپړ تیرمهال سره کوم توپیر نلري لکه : کاشکې زه ولاړ لاي یا ولاړ اي ـ کاشکې ته ولاړ لاي ـ ولاړ اي ......

٤ ـ پوښتني بشپړ اوسمهال چې له خبري هغه سره یوازې په اهنگ کې توپیرلري لکه : ولاړ شم ولاړ شي ،

٥ ـ هیښنې ، چې له خبري یا په بله وینا له پوښتني هغه سره دغږیدونکي په یوه ځانگړي اکر ( وضعیت ) او اهنگ کې توپیرمومي لکه :

ولاړ شم ! ولاړ شي !

٦ ـ تواني بشپړ اوسمهال چې له ( ولاړ ) سره د مرستیالکړ ( شول ) اوز دغبرگغږي کړ نوم ( شولاي یا شواي ) اوړون مومي او په دي توگه د جولي له مخې له تواني بشپړ تیرمهال سره سمون خوري ،

| گڼه / وگړی | یوگړي | ډېرگړي |
|---|---|---|
| ۱ | ولاړ شولای ــ شوای | ولاړ شولای ــ شوای |
| ۲ | رر رر رر | رر رر رر |
| ۳ــ | رر رر رر<br>ولاړه رر رر | رر رر رر<br>ولاړي رر رر |

۷ــ امري بشپړ اوسهال چې يواځې په دويم وگړي پورې اړه لري لکه:

ولاړ شه ! ولاړ شئ !

۸ــ ټينگاري بشپړ اوسهال چې له خبري هغه سره يې تړپير يواځې د ټينگار وييکی (دي )په ورزياتولو کيږي .

له نومځرو سره لکه : زه دي ولاړ شم ــ ته دي ولاړ شې ....

بې نومځرو لــــکه : ولاړ دي شم ــ ولاړ دې شې .......

۹ــ غوښتنــې بشپړ اوسهال چې له ولاړ ــ څخه په ميده ډول ډېر لږ توپير لري لکـــه : سردي ولاړ شه ! گورته ولاړ شې !

۱۰ــ گرماني يا احتمالي بشپړ اوسهال چې له ولاړ سره مربيتيالکر ( شول ) د اړنگ وييکو ( شکيه اداتو ) يا په پله وينا د اړنگ تړکونو په ملتيا اوړون مومي لکه :

ښايي چې ولاړ شم ــ گوندي ولاړ شم ــ لکه چې ولاړ شم ــ کيږي چې ولاړ شم ....

۲ : نابشپړ اوسهال چې يواځې د ارماني او تراني لپاره تل ــ يا تلل ــ راځي ځکه چې د جولي له مخې له تيرمهال سره سمون لري او نورپاتې ډولونه يې د ځ ... له ولي څخه جوړيږي چې د تل ــ يا تلل ــ او ولاړ ــ سوبلاتيف (بشپړاند) بڼه کيږي ...

۱ــ خبــري :

| گڼه / وګړي | يوګــړي | ډيرګــړي |
|---|---|---|
| ۱ | ځم | ځو |
| ۲ | ځــې | ځئ |
| ۳ | ځــي | ځي |

۲ ــ اړوتی لکه : که ځم ــ که ځی ۰۰۰۰۰۰

۳ــ پوښتنی لکه : ځم ځی

٤ــ هيښنی لکه : ځم ! ځی !

٥ــ امري لکه : ځه ! ځی !

٦ــ تينګاري لکه : ځم دي ځی دي (له دويم وګړي پرته) ۰

۷ــ ګوماني چی د (ګوندي) او (لکه چی ) په ملګرتيا دخبريځه غوندي جوړيږي

لکه : ګوندي ځم ــ لکه چی ځم

۸ــ غوښتنی يی د ودنلري ۰

۹ــ ارمانی چی د تل يا په بله وينا تلل ــ د چارنوم (تللی) په اوزدولو سره جوړيږي

لکه : زه تللاي ــ ته تللاي ۰۰۰۰۰۰

۱۰ــ توانی چی د تل يا تلل ــ له چارنوم تلی يا تللی سره د مرستيالکړ (شول )

د اوزده چارنوم (شولاي يا شواي ) په ملتيا جوړښت موس او د ټولو وګړو لپاره په همدي يوه بڼه

راځی لکه : زه تللی شواي ــ ته تللی شواي ۰۰۰۰۰۰

دریم ــ د اوسترمهال کړ اوړ ون (گردان):

اوسترمهال یا مستقبل کړ چې په گانده (ابنده)کې دیوه چارپیښېدل څرگندوي ٠ دجولی اومانا له مخې له اوسمهال سره کوم ستر توپیر نلري دا دواړه مهالونه په یوه نامه ناتیرمهال هم نومول کیدای شي لکه څنگه چې دوکتور تـزي دغه نومونه کاروي ٠ خو بیایې هم د (به) وییکی پـه زیاتولو لـــه اوسمهال سره بیلتون راتلای شي اویه دې توگه په پرتلیز ډول د غزیدونکی دغږ یدا له مهال نه یوځه وروسته مهال ښیي ٠

الف ــ له لیږند خوړ ــ اوخوړ ــ ځخه:

بشپړلکه: وبه خورم ــ وبه خوري

یا ــ وبه خوړل شم ــ وبه خوړل شي

نابشپړلکه: خورم به ــ خوري به

یا: خوړل کیږم به ــ خوړل کیږي به ٠٠٠٠٠

ب ــ له نالیږند ځ ــ اوولاړ ــ ځخه:

بشپړلکه: ولاړ به شم ــ ولاړ به شي ٠

نابشپړلکه: ځم به ــ ځي به ٠٠٠٠٠

## دکړ رغاونې ( ساختمانـــــس ) ډولونـــــه

دکړ تر ېيلا بيلو ګرامري ډولونو او اوړونو (ګرد انو) ورروسته غواړو د وينو رغاونې (لغوي ساختمان) له مخې د هغه رغاونه او جوړ ښت ترکتنې لاندې ونيسو . په دې توګـــه له ځلورو ډولو کړونو سره مخامخيږو : ساده ـ بيلښتي (اشتقاقي) ـ شاپشاـ ترښتي (ترکيبي) .

پاخواړخوا

۱ـ ساده يا يو ستوي کړ چې ستــه يا ښسټ يې له يو ګړيزي (يومورفيميزي) ولې څخه جوړوي . او اوړ ونې (تصريفي) مختاري او روستاړي وربوري سيده نښلول کيږي لکه خور ـ چې خورم ـ خورو ـ خوري ـ خوري . ـ خوري .... او داسې نورې جوړونې ترې کيږي .

۲ـ بيلښتي يا اشتقاقي کړ . چې ستــه يا ښسټ يې له يو ګړيزي ولې او کوم تاړي (افيـکس) څخه جوړوي . په دې مانا چې د کړ ولې جاج (مفهوم) د يوه تاړي په ملتيا بشپړيږي او څرګنديږي . يا په بله وينا د غسې يو تاړي د جاج او مانا له مخې د کړ ولې نه بيليدونکې توک ګڼـل کيږي . په دې توګه که له ولې څخه لرې کړو تاکلی جاج يې اوړي او داسې کوښت له لاسه ورکوي لکه : راغلل ـ د رغلل ـ ورغلل ـ راتلل ـ د رتلل ـ ورتلل ـ راکول ـ د رکول ـ ورکول ـ کښيوتل ـ کښيناستل . کښې ايستل . کښينول ـ پوريوتل ـ پوريوهلـ پوري ايستـل ـ پوري کول ... دغه راز ډير ستاينوم او څيز نومونه هم د روستاړو په نښلونه د اوسمهال کړ ولې ګرځي لکه : لويېدل ـ غټيدل ـ تيريدل ـ کاريدل ـ اوبيدل ـ دوديدل ـ لاسيدل ... يا لويول ـ غټول ـ تيرول ـ کارول ـ اوبول ـ دودول ـ لاسول ... .

د بيلښتي يا اشتقاقي او يا مشتق کړ رغاونه داسې لنډ ون مومي :

۱... کړ ولې + مختاړي = راتلل . د رتلل . ورتلل ...

۲ـ ستاينوم ولې + روستاړي = لويېدل ـ لويول يا غټيدل ـ غټول ...

۳ـ څيز نوم ولې + روستاړي = اوبيدل ـ اوبول ـ يا دوديدل ـ دودول ...

زموږ د ودېيزو پوهانو دغې ډلې کړونو ته ((يدل والا مصدرونه)) وايي چې يوه ناپوهنيزه نومونه ده .

۳ـ خواپرخوایاسست ترښتی (ترکیبی) کړ ۰ هغه رازکړته واین چی د کړ ستمس یاېنست له د وویا یرو خپلواکو گړ ونو (مورفیمونو) څخه هسی سرسري او بیابزیو ځایوالی موندلی وي ۰ په بله وینا یو پوخ ترنگ (ترکیب) ین بللاي نشو ۰ داسی چی سره یوځاي شوي توکونه نه خج له لاسه ورکوي اونه پایلی اوړه دي توگه ین پایلی سره جلا جلا خپله اوړ ونی (تصریفی) لوښه (خاصه) ترسره کوي حال داچی په یوه پوخ پارښتینی ترنگ کی د رغنده توکونو (اجزاوو) خجونه او (تصریفی) پایلی پرورستنی توک باندي پنه یدنه اوپوکیدنه (تجمع او توحید) مومی ۰ دخواپرخوا کړ رغاونه په دي لاندي گړ نو (اصطلاحاتو) کی ښوول کیږي :

۱) څیزنوم + مرستیالکړ = زمری کیدل ـ کول ؛ زمری کیدل ـ کول ـ زمري کیدل ـ کول ۰ زمری یازمریانی کیدل ـ کول ۰۰۰۰۰

۲) ستاینوم + مرستیالکړ = مړ کیدل ـ کول ؛ مړه کیدل ـ کول ؛ مړه کیدل ـ کول ۰ مړي کیدل ـ کول ۰۰۰

۳) چاروال کړ نوم + مرستیالکړ = سرخوړ ونکی کیدل ـ کول ۰ سرخوړ ونکې کیدل ـ کول ۰ سرخوړ ونکي کیدل ـ کول ۰ سرخوړ ونکی کیدل ـ کول ۰۰۰۰۰

٤) بیچار کړ نوم + مرستیالکړ = سرخوړ لی کیدل ـ کول ۰ سرخوړ لې کیدل ـ کول ۰ سرخوړ لي کیدل ـ کول ـ سرخوړ لې کیدل ـ کول ۰۰۰

۵) شمیرنوم + مرستیالکړ = دوه کیدل ـ کول ؛ دوي کیدل ـ کول ۰۰۰

٦) بیاځلی ستاینوم + مرستیالکړ = تود تود کیدل ـ کول ؛ توده توده کیدل ـ کول ۰ تاوده تاوده کیدل ـ کول ؛ تودي تودي کیدل ـ کول ۰۰۰

۷) سربل + څیزنوم مرستیالکړ = ترلاسه کیدل ـ کول ۰۰۰۰

۸) سربل + څیزنوم + اوستربل + ارکړ = له سرنه نیول ـ له پښو څخه غورځیدل ـ غورځول ۰ تریایه پوري رسیدل ـ رسول ۰۰۰۰

٩) ځیزنوم + او ستربل + مرستیالکړ = مخ ته کیدل – کول ، شاته کیدل – کول ...

١٠) ځیزنوم + اوستربل + ارکړ = پاېته رسیدل – رسول ، سرته ختل – ختول ....

١١) ځیزنوم + او ستربل + بیلبنتی کړ = لاس ته راوړل – لاس ته راوستل ....

٤– تړبنتی (ترکیبی) کړ ، چی له خواپرخوا کړ سرهی په رغاونه کی توپیر دادی چی دلته مله یا یو ځای شوی توکونه سره یونه جلا کیدونکی یووالی منځ ته راوړی په دی مانا چی مخنی توکسونه یی خپل خج او اوړونی تاړی اوله دی سره مانیزه او ګرامری خپلواکی له لاسه ورکوی او یواځی وروستنی هغه یی دګرد تړنګ په ښکارندوبی یو غښتلی خج او اوړونی نښانی ځان ته اخلی . البته مخنی توکونه یی یا له آره ناوړیدونی وی (لکه کړولونه) اویایی په همدغه تړنګ کی خپله اوړونی او ګرامری جوله اوځارومانا له لاسه ورکړی وی . تړبنتی کړ هم لکه د (خواپرخوا) کړ غوندی په کړنو (ایدیمونو) اړه لری لکه په دی بیلګو کی:

ځیـزنوم + مرستیالکړ = زړه کیدل (میل درلودل) یا ښکاره کیدل – کول . غلاکیدل – کول (خج پرمرستیالکړ) کهخواپرخوا کسړ بدلیږی .

ځیزنوم + مرستیالکړ = زړه کول (جرئت کول)

ځیزنوم + مرستیالکړ = توره کول (غیرت یا میړانه کول) .

تړبنتی ځیزنوم + مرستیالکړ = زړه نازړه کیدل (تکښی یا متردد کیدل)

بیاځلی ځیزنوم + مرستیالکړ = سترګی سترګی کیدل (انتظار ایستل) برخه برخه – ټوټه ټوټه – وندی وندی – لوټی لوټی کیدل یا کول ....

ستاینـــوم + مرستیالکړ = لوده – شوده – بدمرغه ... کیدل یا کول .

بیاځلی ستاینوم + مرستیالکړ = لوده لوده – شوده شوده .... کیدل یا کول .

بیاځلی کړول + مرستیالکړ = پورته پورته – کښته کښته – وروسته وروسته .... کیدل یا کول .

ځیزنوم + ارکړ = پښه نیول – لاس اخیستل – سرخوزیدل – ځان پړسول – ځان وهل – ځان وژل – ځان ژوبلول او داسی نور منځوال کړونه له اره تړبنتی کړونه بریښی .

دویمه برخــــه :

ناوړیدونی ګړونه ( INDECLINABLE MORPHEMES )

دګړپوهنی (مورفولوژي) په تیره برخه کی موله نومونو او ګړونو څخه خبري وکړې او په هغه ترځ کی مو د هغوی ولونه او اوړونه (ګردانونه) وښوول په دي برخه کی غواړو دګړونو (مورفیمونو) یوه بله (دویمه) ډله ترکتنی لاندي ونیسو . ددي ډلی ځانګړتیا (خاصه) دا ده چی دتیري ډلی (نومونو او ګړونو) په توپیر ځانته کوم ازاده ویېزه (لغوي) مانا نلري بلکی له خپلواکو ګړونو (نومونو او ګړونو) سره یې چار او مانا جوتیږي او له ګړولړونو (قیدونو) پرته دغو ډلی (جملی) له مرستیالو توکونو څخه ګڼل کیږي . ګړولونه بیاله نومونو او ګړونوسره دارویا ازادو ګړونـــو (مورفیمونو) ډله جوړ وي .

ناوړیدونی ګړونه په دي وروسته توګه بیلابیلی ټولی (کټګوري) او ډولونه جوړ وي :

لومړي ــ ګړولونه یاقیدونه ( ADVERBS ) :

ګړولونه هغه ژبنی توکونه دي چی د یوه ګړ ډپېښیدنی څرنګوالی ښیي داخر نګوالی دګړ دپیښیدلوځاي یا مهال ټاکي ، ویایی څرګندتیا ټینګار او داسی نوري ځانګړتیاوي (خصوصیات) ښکاره کوي . په پښتو کی اګر ګړولونه ناوړیدونی دي ، ناارلکه څیزنومونه او ستاینومونه چی په څـرمه ډول دګړولونو په توګه کارول کیږي البته ناوړیدونی نه بلل کیږي . په ټولیز ډول ګړولونه داوروسته ویشنه لري :

ا ــ مهالی ګړول : چی دمهال له مخی دیوه ګړ پیښیدنه اغیزمنوي لکه :

اوس ــ وروسته ــ ځکی ــ دمخه ــ پخوا ــ وړاندې ــ همدلاسه ــ سملاسی په سرکی ــ په پیل کی ــ په پاي کی ــ پاي ته ــ بیرته ــ سرته ــ ژر ــ ورو ــ ګړندي ــ ځنډ یا په ځنډ ــ بی ځنډه ــ په بیړه ــ په تلوار ــ په چټکی ــ په چابکی ــ ووړمه ورځ ــ ووړمه شپه ــ پرون ــ پرون ورځ ــ پرون شپه ــ نن ــ نن ورځ ــ نن شپه ــ نن ګهیځ ــ نن غرمه ــ نن مابنام ... ــ سبا ــ سباته ــ بل سبا ــ بل سباته ــ ګهیځ ــ سهار ــ غرمه ــ ماسپښین ــ مازیګر .

(مازیګر چیريوي لوي مه شــــی ماپېښنګی کی شنه بادرنګ راوړي ووبه) .

دوخته ــ ناوخته ــ لمرخاته ــ لمرپرېواته ــ سز کال ــ پروسز کار ــ وورم کال ــ لاوورم کال (ته ) ــ کال ته ــ بل کال ته ــ لابل کال ته ــ ترڅو یاڅرــ په څغاسته ــ په منډه ــ د منډي له مخې ــ دولاړي له مخې .

اوداسې نور ا راونا ار کړ ولونه ۰ بیا څلې ( تکراري ) لکه : ژر ژر ــ اوس اوس ۰۰۰ لنډه پرلنډه یا لنډه پرلنډه ــ لاس پرلاس ۰۰۰

۲ــ ځون ( مکاني ) کړ ول : چې دیوه کړ پیښېدنه دځاي او چاپېریال له مخې اغیزمنه کوي لکـــــــه :

دلته ــ هلته ــ دلې ــ هلې ــ دوري ــ هوري ــ مخکې ــ وروسته ــ شاته ــ مخ ته ــ بیرته وړاندې ــ لرې ــ نژدې ۰۰۰ ( دغه راز کړ ولونه زیاتره مهالي اوځوني دواړه کاره ورکوي په بله وینا هم مهالي او هم ځوني دي ) ــ کښته ــ ورته ــ لاندي ــ باندي ــ دننه ــ دباندې ــ اخوا ــ دیخوا ــ له لرې ــ له نژدې ــ له وړایا له وړایه ــ مخامخ ــ پښ شا ــ مخپورته ــ مخکښته ــ مخ پر وړاندې ــ پرمخ ــ پرشا ــ ستونې ستغ یا ستونې ستاغ ــ سرپرځېنې ۰۰۰ ځاي پرځاي ــ لوړ دلوړه ــ لوړا لوړ ــ کوراکور ۰۰۰۰۰ اوداسې نور ار اونا اریا ساده او ترښتې ځوني کړ ولونه ۰

۳ــ څرګندنې او ټینګاري کړ ولونه : چې دیوه کړ دپیښېدنې څرګند تیا ۰ حالت ځرنګتیا یا ټینګارښیي لکه : په څغرده ــ په ډاګ یاپه ډاګه ــ ډانګ پیـلې ( ویل ) ــ په‌ښکاره ــ په پټــه ــ په څرګنده ــ په‌غلا ــ په زیار ــ په خواري ــ په بیړانه ــ په ویره خوله ــ په زور یاپه زوره ــ په خوښه ــ ورویاپه ورو ( اواز ) ــ په نره ــ په مړوسترګو ــ په ټینـو سترګو ــ په‌ځګوسترګو ــ په هسکه‌غاړه ــ په کلکه ــ په ټینګه ــ زړه نازړه ( کول ــ ویل ۰۰۰ ) ــ په‌ناسته ــ په ولاړه ۰ ــ په منډه ــ په ملاسته ــ هرومرو ــ زازو ــ په هره ډول ــ په هره توګه ــ هیڅ په هیڅ یا هیڅ‌په هیڅه ــ خوښې په خوښې ــ په اوزدو ــ په لنډه و یاپه سار ه‌څه ناڅه ــ زړه نازړه ــ لږ و ډېر ۰۰۰ یاداوزدو ګړنوپه بنهـه لکه : وانبه پرخوله رسې پرغاړه ( ورتلل ) ۰۰۰۰۰۰

دویم — وییکی (ادوات PARTICLES ) :

د اهم دناورپیدونیو یا آزاد و گړونو ( مورفیمونو ) یوه غوره برخه ده او بیلګیې په دي وروسته ډول دي :

۱— اړیکوییکی (ارتباطی ادات CONJUNCTIONS ) : چې څومره والی او څرنګوالی یاورته والی له مخی سره اړي او څرمه غونډلی (جملی )نښلوي اوپه دي توګه دوه دوه سره غاړه کیږي چې له لومړي سره یې زیاتره ( چې ) هم ملګري کیږي که څه هم (چې) پخپله ځانته یو اړیکوییکی هم دي . اوپه ګډه ددوو ټوټو یا غونډلو اړیکی ټینګوي لکه څومره او هومره په دي غبرګه غونډله کی . څومره دیګ هومره تیپر . نوري داسی جوړي لکه : څنګه چې — هسی . که څه هم — بیا هم . څومره چې — هومره یاهماغومره . چیري — هلته ( چیري دي نه هلته دي شپه) هسی — داسی — همداسی — همدارنګه — همدارازـ هغسی — هماغسی یاهمغسی — خوـ مګر همدونمره — په همدي ډول — په همدي راز . چې — نو .... په کدهاري ګړدود کی ځکه هم دڅنګه پازه پرځای کوي لکه چې وایی ځکه چې ناروغ وم نو درمل می وخوړل . ( که)) بیاپه اړ ونیبکوکی یو اړوییکی دي چې ددوو غونډلو ترمنځ یواړ ( شرط ) ټینګوي لکه که ته راشی نوزه به هم راشم .

۲— ورتنی یاتشبیهی وییکی چې په دودیز ګرامر او ادبی فنونو کی یې (حروف تشبیه) بولی هغه وییکی دي چې ددوو یازیاتو شیزونو یاپدیدو ورته والی او مشابهت ښیی لکه :

لکه — غوندي — په څیر — په رنګ — په شان — په دود — په توګه — په ډول — په راز ....

۳— ترییکی (عطف توري ) چې دوه توکونه (ویی ) یاغونډلی سره ملګري کوي لکه او — و — که — یا — سره یې دي بیلګو کی : باغ وایډ ګلونو ډکی ناست وایزه اوته —( و ) او ( او ) سره هممانیزدي اویواځی غږیز ( فونو لوژیکی ) توپیر سره لري همدغه ( او) دي چې په زیاته کاریدنه پر( و) اوړي لکه موروپلار — خور و ورور مګر که له خپلواکپای ویی سره بل ویی تړل کیږي نوپه اره بڼه راځی لکه کاکا او ماما ...

بل داچې زیاتره (او) یو نحوي تړون ښیي او (و) یو لغوي‌تړون ۰۰۰۰۰ همدارنگه (که) او(یا) هم همـمانیز تړوییکی بلل کیږي لکه ښه که بد ښه یا بد ـ (سره) له نورو تړوییکوسره داتوپیر لري‌چې دملگرو توکونو (ویېو یا غونډ لو) ترمنځ نه بلکې تړېوروسته راځي او هغه سره تړي یاملگري‌کوي ۰

۴ـ تولوییکی (اضافت توري) چې څیزونه یاپدیدي‌سره یو له بله اړوندوي یا یودبل تړل او ملکیت کوي‌په جولیز ډول پښتو یواځې یوتولوییکی (د) لري لکه : دهلك خولې ـ دپښتو ټانگه داسمان ستوري ۰۰۰۰۰۰ داچې پښتو ټانگه یا دري ځانگه ـ ادب پوهنځي یا کابل پوهنتون بې (د) ویل کیږي دلیل داديچې په لومړیو دوو ساربو (مثالو) کې پښتو اودري دنورو ژبنی نومونو غونډ ي د ستاینومو ښه‌ې غوره کوي‌او ستاینوم په پښتو کې په خپل ځیز نوم پوري سیده نښلي نور ساري یې لکه : افغان اولس ـ باختر اژانس ـ پښتون ځلمی اوداسې نور۰ او ادب پوهنځي یاکابل پوهنـتون دنومونو او تړگونو (ترکیبونو) په توگه د (د) غونډي یونحوي توك ته نوره اړه نلري : نور ساري یې لکه : طب پوهنځي ـ پلان وزارت ـ دفاع‌وزارت اوداسې نور۰(د) دتولوالی‌ترځنگه‌لږ و ډېره مهالي پاره هم ترسره کوي لکه دشپې ـ دورځې ۰۰۰ مگر د سرېل په توگه د (د ) کارونه دلیکې معیاري پښتو له ښستو څخه چپه بریښي لکه دځلمی‌سره دکډهار څخه راغلم ۰ همداراز له تشبیهی ویېکو (غونډي ـ په څیر ـ په رنگ ۰۰۰) د یوه (سرېل) په‌توگه هم‌غاړه کیږي لکه دزمري غونډي ۰۰۰۰ له (ـ پاره) سره ښن سبا دومره نه مل کیږي بلکې پر (له) اوښتـې دي۰

۵ـ سرېلونه( PREPOSITIONEN ) او اوستربلونه( POSTPOSITIONEN ) :

سرېل یا پیشینه هغه ویېکی دي‌چې تریوه نوم دمخه راځي اوپه‌یوه‌غونډ (فقره) یا غونډ له کې دهغه‌نوم پیر اودریځ ښیي ۰ لکه (په) په (په‌کورکې) ـ (له) په (له ښوونځي څخه) یا (له ځلمی سره) (تر) په (ترکوره پورې) ـ (په) په (په تاپورې) اوداسې نورو بیلگو کې ۰ په دې‌توگه موږ گورو چې یو سرېل دیوه بل ویېکی په‌ملگرتیا چې ترنوم څخه وروسته راځي ۰ نوم په تون ـ وتون اوداسې

نورو پیرو کې اچوي دغه تر نامه وروسته ملګري ویکي یې (اوستربل) یا پسینه بلل کیږي ۰ سره له دي چې سربلونه او اوستربلونه دغونډل (جملې) یا په بله وینا په ناخپلواکو او مرستیالو توکونو کې راځي اومانا اویازه یې د همغو نومونو یا کړنو او کړ ولونو په ګاونډ یتوب کې څرګندیداای شي ۰ خود اچې پردغو ارو یا خپلواکو توکونو یو ډول اغیز لري اود همغو د ریخونو او پیرونـــه (حالتونه) څرګند وي نو اد اره کوونکې ـ چلوونکي یا واکمن توکونه هم بلل کیږي (په نحوي تجزیه کې به پري پوره خبري وشي) ۰ د دغه پورتنیو پاڼو اوډندو له پلوه سربلونه او اوستربلونه په دي وروستیو ډولو ویشنه مومي:

۱ـ په ـ چې له (کې) اوستربل سره د اړوند (مربوط) نوم تون پیر یا ظرفي حالت څرګند وي لکه (په توګلګې کې) ـ له (پوري) اوستربل سره بو بل ډول تون پیر یا په بله وینا یوبیو ستون ښیي لکه په ځان پوري ـ په تاپوري ـ ستاپه خبري پوري (بارتباط ګپ شما) ـ له (سره) اوستربل سره یو لوښتپیر (الې حالت) را ښیي لکه په بیاتې سره ـ په چړي سره ـ په وینا سره ـ په زور سره ـ په خوښې سره ۰ له (پس) اوستربل سره یو بل راز تونپیر یا پرله پسې والــی څرګند وي لکه: په تاپسې ـ په سختي پسې اسانې راځي ـ په ژبې پسې پسرلی دي لکه په پورتنیو بیلګو کې چې لیدل کیږي کله کله تري ملګري اوستربل لویداي هم شي لکــــه: په خوښه که په زوروي له مظلوم به د ظالم لاس لنډیږي په تا اړه نلري (په تاپوري اړه نلري) ـ په لیکانې لیک کیږي (په لیکانې سره لیک کیږي) ۰ مګر (په کور) له (په کور کې) سره یوراز نه دي ځکه ــــــــــــــــــــــــــه (پـــه کــــــــــــــــــور) له اره (پرکور) دي چې ظرفي نه بلکې استعلایي مانا ښندي ۰ همداراز په وخت ـ په کال ـ په مازیګر ـ په بجو ۰۰۰۰ د پروخت ـ پرکال ـ پرمازیګر ـ پربجو ۰۰۰۰ نا سم یا ناکره ښېي دي ۰ همداخبره ده چې موږ (په پښتولیکل) او (پرپښتو لیکل) سره تبییروو ۰

۲ـ پر ـ یو باند یني (استعلایي) وییکي دي چې یو اړوند اوستربل (باندي) یې زیاتره غورځیږي لکه پرمیز باندي یا پرمیز ـ پرځمکه باندي یا پرځمکه ـ پرزړه باندي یا پرزړه ـ

پرسپاندي یا پرسر — پرزړه یو څه پرخوله بل څه — پروخت — پرکور — پرکابل — پرلسو بجو — پر ۱۳۵٦ کال اود اسی نور • پرهم د (په) غوندې زورپاي نوموړنه پراوښتس پرونه اړ زي •

له کندهاري اوتاریخي ادبي پښتو پرنه نور زیاتره ګرد ود ونه (په) او (پر) سره ګډ وي پیوه وخت یاد واړه په الي — ارتباطي اوتسلسلي مانا کاروي په بله وینا دواړه د (په) پازه پرځاي کوي او یادواړه په استعلایی مانا یاپه بله ژبه دواړه د (پر) د ندنه تر سره کوي • لکه د (په پښتو لیکل) او (پرپښتو لیکل) بیالګې چې د (په) په برخه کې راوړل شوې • په یوه کره لیکنی پښتو کې ددغه دواړو سریلونو توپیر ضروري دي • یوزښتی ارهم دادي چې دوه توکونه یا دود ونه په تاریخ اواتمو لوژیک ډول هیڅکله هما نیزاو همپازینه وي د همدغه ارپه ترخ کې ښپماییو ارهم سمبالیزي که په ګړنی ژبه کې دغه ارونه د ومره پرځاي هم نشي مګرپه لیکنی ژبه کې څو اړخیز ګټور نقش لري • توپیریانه ګډون — کارویش او ښپما دنړۍ دهري ژبې بنسټ جوړوي • په دې توګه په کارد ي (په پښتو لیکل) دا سی مانا کړ وچې یو څه په پښتو ژبه لیکل کیږ ینه په بله ژبه؛ (پرپښتو لیکل) دامانا چې دپښتو په باره کې څه لیکل کیږي نه د بلې ژبې یابلې موضوع په باب همدا راز پرکابل اوسیږم دامانا چې دکابل ښار په شاوخواکې اوسیږم اوپه په کابل کې اوسیږم دا چې دننه په کابل یا کابل ښار کې • په پارسي کې هم د (به) او (بر) توپیر په زړه ادب اواوسنی ایرانی ادب اولیکه کې پوره څرګند دي • د (پر) بل اوستریل (سرپیره) دي چې ناکره ډول یې (پرسیره) هم لیکو لوییرد ود لري • دغه اوستریل هیڅکله نه غورځول کیږي که نه مانایی له (پاندي) سره ګډ یږي اوپوکیږي • پرد وییکو مخوي (اداتی ضمیر) — پري — پرځاي کارول چې کند هاري ګړ دود واړه لري هم دیاد شوو ژبنیو ارونو له مخې په تولیزه لیکنی پښتو کې دمنښ وړنه بریښي • همدا سې تراوبه هم درواخله چې له ترې اوبی یاپري سره ګډ ډول ګډ ډوي پیښوي •

۳ — تر — چې د (پر) په (مقابل) سریل دي هغه دا چې ترهرڅه دمخه د پرغوند ې د (باندي) نه چې د (لاندې) اند بسند ي له دې کبله یې لوموړي اوستریل (لاندې) دي چې هیڅکله غورځیدنه نه مني لکه (ترمیز لاندې) چې (ترمیز) بیا ګرد سره پاه مانا بښندي

اوهغه تونی او مهالی پیوستون دي لکه تر ننګرهاره ـ ترمازیګره چې اوستربل (پوري) یـــی

هرو مروملتیانکوي . د ریم اوستربل یی (وروسته) یاراوروسته کرول دي لکه ترغرمی وروستـه

یاتـرغرمی راوروسته ـ ترځلمی وروسته زما واردي .... له څلورم اوستربل څخه (ځنی ـ نه)

سره پرتلیز چاج ښندي لکه تر تاڅخه زه ښه یم چې دغه اوستربل په غورځید و (ترتا) هم سم راځی .

د دي پرځای چې د نورو ژبو په ښپښـــو ـ سزنی کال د پروسز کال په نسبت لپرورندي (بارنده)

دي ـ ووایو (سزنی کال تر پروسز کال لپرورندي دي) لنډ او کره راځی . (تر) په دغه پرتلیزه

(نسبتی یا تدرجی) مانا له (له) سربل سره همغانیزکیږي خود اچې (له ـ څخه) ترهر څـه

د مخه وتون پیر (منشایی) حالت څرګند وي . نو بیا هم له (تر ـ څخه) سره یی ګډ ول په کارندي ـ

یالز تر لږه (تر تاځنی) وکارول شی . له تولوبیکي (اضافت توري) ـ د ـ سره یی ونجول هم

پی ځایه دي لکه ننګرهاریان چې وایی : د کوره په ساراخوښ یم ـ د ویشه په تالا . خوداچې

په کډه کره لیکی پښتوکی د لته د پرتلی مانا موخه (مطلوب) ده نو (ترکوره پرسارا خوښ یم ـ

ترویشه پرتالا) تري سم بریښی اوله کوره پرسارا خوښ یم ـ له ویشه پرتالا) د ومره تیـک اوغوره

نه راځــی .

دغه راز په ختیزو ګرد ود وکی د (په) ـ (تر) ـ (له) پرځای هم زیاتره (د) کارول

کیږي چې دا هم له ژبنیو او معیاري ارونو څخه چپ بلل کیږي لکه د ځلمی پسی ـ د ننګرهار

پوري ـ د میزلاندې ـ د ننګرهار نه ـ د ځلمی سره د کند هاره راغلم ـ د پښتو تولنی د لغاتو

د څانګی د خوا ـ د تانه یا ستانه زه ښه یم .... کره بول یی : په ځلمی پسی ـ ترننګرهار پوري ـ

ترمیز لاندې ـ له ننګرهاره له ځلمی سره له کند هاره راغلم ـ د پښتوټولنی د لغاتو د څانګی له خوا ـ

ترتا (څخه) زه ښه یم .....

٤ـ له ـ چې له (څخه ـ نه یا ځنی) اوستربل سره له اره د یوه نوم (وتون پیر)

منشایی حالت څرګند وي لکه له سیستانه یا له سیستان څخه یا له سیستان نه او یا له سیستان

ځنی . په د یمه (نسبتی) د انایی کارول یی د ومره کره نه بریښی لکه پاس چې ورته ګوته ونیول شوه .

(له) له دويم اوستربل (سره سره د ملګرتيا (معيت) جاج ښندي لکه له ځلمي سره تر هرات پورې ملګري وم او داسې نور. په دغه مانا ين اوستربل (سره) پر (څخه يا څه) اړول له ګړ ي کره ليکن پښتو څخه چپ بريښي په بله وينا بايد (له ځلمي سره) او (له ځلمي څخه) په يوه مانا ونه کارول شي. دريم اوستربل ين (وروسته) دي چې مهالي او تونې کړ ول (قيد) ورسره جوړ وي او له (تر) سره ين پاره يو کيږي لکه لرغومې وروسته کورته ځم چې البته (ترغرمې وروسته ترې) زيات غوره بريښي په بله وينا (وروسته) د (له) نه بلکې د (تر) معياري اوستربل دي. څلورم اوستربل ين (راهيس) دي چې يو مهالي کړ ول ورسره جوړ وي لکه له پروسږ کال راهيس — له ډيرو کلو راهيس — له پخوا راهيس .... ناکره ين : د پروسږ کال راهيس — د ډيرو کلو راهيس — د پخوا راهيس ...... په دې توګه (راهيس) ديوه اوستربل په توګه بايد په (نوم) سيده ونښلول شي او يل کوم زياتی اوستربل يا بل ژبنی توک ترې د مخه نشي په بله وينا (له ډيرو کلو څخه راهيس) نه بلکې (له ډيرو کلو راهيس) وويل شي (د ډيروکلو را په ديخوا) هم مانيز اندول دي خود پارسي (ازسالها باينطرف) ټکي پرتکي اړونه ده او د ومره رواني اولنډون هم نلري. د (له) پنځم اوستربل (پرته) دي چې د (سره) به او مقابل جاج ښندي د امانا چې د اړوند نوم ملګرتيا نه چې بيلتيا اونشتوالي څرګند وي لکه له بلليو پرته نابللي هم راغلي وو.

٥— بن — چې زياتره د (نا) غوندي يوستاينوميز (صفتي) مختاړي دي لکه بن کوره. خولز وډيره سربلي ځانګړ تيا هم لري او هغه هم زياتره د (له) په ملګرتيا او د يوائينې اوستربل (څخه — نه يا ځنې) په درلودلو. لکه بن له تا څخه — بن له هغه څخه چې له تا او بن له هغه هم ويل کيږي مګر (بن تا) ويل کيږي او (بن هغه) نه.

—————— (بن) تل يو ځيلواك سربل نه دي.

٦— و — يو پخوانی سربل دی چې له (ته) او ستربل سره ورتلون پير (مفعول له حالت) څرګند وي چې پخوانی څرك ين په لويديزو (کندهاري) ګړ دود وکي پاتی دي اونورو ټولو ګړ دود وله لاسه ورکړي او د هغه اوستربل (ته) يوستري کاروي لکه : وتاته وايم — ونسوونځی ته ځم ...

د منځنی دوري شاعرانو هم ډیر کارولی اوپا کله یې د یې ځلی ترنوم وروسته هم راوړی او اوستریل (ته) سره بیاهم پتلیز (جرخت) نه لولی لکه رحمان بابا چې واین : خدای وماوته ښکاره کړ هغه لمریې ... دي لکه : پیرمحمد کاکړ چې ویلی دي : سوز گداز د محبت هسی وماړا ... په هره توگه د دوو تنکو د ډیر ښت په لاسوند تر (و – ته)، (– ته) زبات معیاري ارزښت لري ۰

۲ــ د – کځه هم په ترلیز توول یو تولوییکی دي څوله (غوندي) اوداسی نوروتشبیهی اوتونی وییکو سره د سریل په توگه هم راځی خوبیا هم د تولوالی ځانګرتیا نښیی لکه د ځلمی غوندي پــه رنگ – پرشیر – په توول – په راز – په توگه – لپاره د کوردننبه – د کورد باندي ۰۰۰۰ چې ترکوردننه – ترکور د باندي باه دانی ورکري ۰ چاپیر – چارچاپیرباگرد چاپیر – تاوراتاو – کښته – پورته – پاسی ۰۰۰ هم د تر اوستریلونه دي ۰ پرپورتنیو وییکو سربیره ۰ ځینی نور راز راز وییکی هم شته چې په غونډه له کی بیلا بیلی پازي لري په دوي کی د ځینو پازي صرفی بلل کیږي او ځینو نحوي او ځینو د واړه توله ۰ صرفی لکه (به) چې دنا بشپړ اونا څبري (لکه گومانی) اواو ستر معال کړ یوتوك جرړیږي یا (نه) او (مه) چې کړ نفی یانهی کوي ۰ یا (که) چې اړوییکی دي ۰ غونډه له پوهیزیا نحوي لکه (نه) ومنفی ځواب په توگه – (هو) د مثبت ځواب په توگه. چك (ولی نه) هم ځواب په توگه – (سره) په صرفی توول لکه سره تلل – په نحوي توول یاپه باله ښنا د اوستریل په توگه لکه له ځلمی سره ولاړ – (بیا) د کړ ول او هم اړیکوییکی په توگه – (مگر) یا (خو) د اړیکوییکی په توگه – کورت – بیغی – چور – هلو – سوچ – چورلت – ورت – بیخپوره – لا – ان – هن – أیله – په متی یا متی ۰۰۰ د مرستیالو کړ لونو په توگه – و – یه – یا – آ – او – ای د بلن وییکو په توگه – (ایا) د پوښتوییکی په توگه ۰ باروییکی لکه اخ – ارخ – اوش – اوه – آه ۰۰۰ چې د ناخاپی خوښی یاویري اوداسی نورو هیجانونو (پاریدنو) ښکارگندونه کوي چې تر اړو او مرستیالو توکونو وروسته د غونډه لی د توکونو د ریمه توله جرړیږي او پرځپل ځای ځیرل کیږي ۰

وینا وانبتی یا تکیه کلامونه لکه ماسکه – غوله یا غولی – مړه – یامړې – غوچی – چی دي ۰۰۰ کاکا گوري – ماما گوري ۰۰۰ هم لـږو ډیر په یوستوو او ترښتی ویکو کی راځی ۰ چی د پاړېلن ویکو یا پارویکو غوندې نومونی پازه نه پرځای‌کوي بلکی راز راز ننگیرنی (احساسات) څرگندوي ۰

## ۳ـ کـــــــړاوونـــــــه

١ـ کړځه راز گړ دي؟ څه او ښنگه څرگندونه کوي ؟

٢ـ مصدر له کړ سره څه اړیکی لري اودغه نومونه (اصطلاح) دڅه لپاره کارول کیده او کارول کیږي ؟

٣ـ دیوه کړ بنسټ او اساس څه څیز دي اوپه څه نامه یادیږي ؟

٤ـ یو اوړ ون موندلی کړ څومره توکونه اوچارونه د رلوداي شي ؟

٥ـ مهال پرځو ډوله دي ؟

٦ـ کړ نوزي څه ته وایی او پرڅو ډوله دي ؟

٧ـ وگړي او گنـه سره څه توپیر لري ؟

٨ـ چاروال ــ بیچار او منځوال کړ په یو یو ساري (مثال) راوبیژنی ۰ !

٩ـ کړ نوم یا حاصل مصدر څه ته وایی او څو ډوله جوړیداي شی ؟

١٠ـ توانی کړ ښنگه جوړیزي ؟

١١ـ بشپړ (مطلق ) اونابشپړ (غیر مطلق ) کړ سره څه توپیرلري ؟

١٢ـ لراولنډ کړ په یو یو ساري‌وښیاست ؟

١٣ـ کوزاتیف‌یا لیزند چارکړ څه ته وایی ؟ له‌یوه ساري سره یی وښیاست !

١٤ـ کړول څه ته وایی ؟

۱۵ــ د لاندې غونډ ونه یا عبارتونه کوم کوم ډول کړ ولونه دي او په غونډ لو کښ څه پازي پرځاي کوي ؟

په سپرانه ــ په ځغرده ــ په ډاګه ــ ډانګ پیلی ــ هرو مرو ــ هیڅکله ــ ژر ــ ژرژر ــ ورو ــ په ورو ــ په زور ــ په خوښه ــ په ناخوښه ــ ورورو ــ دلته یا دلی ــ هلته یا هلی یاهله ــ دننه ــ دباندې ــ دلاندې ــ شاوخوا ــ ګرد چاپېر ــ دپاسه ــ کښته ــ له کښته ــ پورته ــ له پورته ــ په لوی لاس ــ په غلا ــ په پټه ــ په ښکاره ــ په څرګنده ــ په غوږ اوږ یاپه غوږ مالی ــ په تېتو سترګو ... نن ــ پرون ــ وورمه ورځ ــ سږ کال ــ پروسږ کال ــ کال ته ــ بل کال ته ــ پسرلی ته ــ دشپې ــ د ورځې ــ غرمه ــ مازیګر ....

## ٤ــ کړاوونه ( تمرینونـــــــه )

۱ــ سربل څه ته وایي او ستربل څه مانا ؟

۲ــ پښتو ټول څو ستربلونه او اوستربلونه لري او هغه کوم دي ؟

د دې لاندې غونډ لو تش ځایونه په سمو سربلونو او اوستربلونو ډک کړئ !

۳ــ ... کابل کې دژمی سړه وي ــ ... زړه به دې یوه وي ــ درېیښه په شی بله ــ زه ... لیکانی سره لیکل کوم ــ زه ... انګلیس ... روس ښه غږ یداي شم ــ کوچیان داوړي ... کابل وي او دژمی ... ننګرهار ... اوسی ــ زما په کالیو .... مه خانده ! ببین ... تور اوښتل یابدلېدل ــ اوبه ... ډانګ بیلول ــ ... زده کړې پس ملا وتړه ! په تا ... اړه نلري ــ زه کور ... پنځو بجو ځم ــ ... غره باندې واوره اوري ــ ... ډیوي لاندې تیاره ده ــ ځلمی سرپېره زمري هم راغی ــ ... ځلمی پرته نور ټول ولاړل ــ ... ټولګی دننه ــ ... ټولګی دباندې ــ سپوږمی .... منځ داسمان راغله ــ یاخوخوب نشته یا خوما ... نه راځینه ــ که غم ... غمه شرمېدلاي ــ ... مابه نه راتلاي ځولی ځولی غمونه ــ ... تور ټوپک ویشتلی راشي ــ

دبی ننګی اوازدې مه را لحه مینـه ! دیار ۰۰۰ پاره درمســال جاروکومـــــــــه ۰۰۰
ګودرسور سالو بنـــــکاره شـــو ــ اشنامی سر۰۰۰۰۰ وطن کینبود ــ ۰۰۰۰۰
تار دزلفو به کښې ورته ګیږ مه ــ که زما عمر ۰۰۰۰ ضرور وي تیر به شینه ۰۰۰۰ لوبوغرودخداي
نظردي ۰۰۰ لعن ۰۰۰۰ یې زیږ ګلونه ــ که ولاړ شي ۰۰۰ بلخه درسره ده خپله
برخه ــ ګلاب ۰۰۰ اصله شاهزاده دي ــ رامبیل چامبیل یې اردلیان ورسره لحینه ــ ۰۰۰۰
ګودرخه کانه راوشوه ــ چې کشره خور یې ورسره ګودر ۰۰۰ لحینه ــ ما ۰۰۰۰ په سرو زرومنظور
دی ــ که دجانان ۰۰۰ لاسه توري خاورې وینه ــ خپه پرې نه یم ۰۰۰ جانان سره به یمـه ــ
۰۰۰۰ خمارو سترګودي جارشم ــ چې ۰۰۰ ژړ اشی مرغلري توبوینه ــ ۰۰۰ وچه ړ اګـــه
دلونګو بوي رالحینه ــ زما ۰۰۰ تشه خند استه ــ مابه جانان ۰۰۰ لاس نیولی ګرځوونـــه
که شینکی خال می دچرو ۰۰۰ خوکو ٔینه ــ چې ۰۰۰ سنګره پورې زه درسره لحمـــه
سپوږمی ۰۰۰ دي خه احسان دي ــ زما جانان ۰۰۰ دیواله سیوري ته لحینه ۰

دپښتو ګړ ونو ( مور فیمزنو ) د ډلبندۍ انځور لیـــــــــــک



## د ریمه برخه

## غونډله پوهه ( نحو SYNTAX )

لکه څنګه چې دغږ پوهې د وېښنې یوون ( د بحث واحد ) غږ دي او دګړ پوهې هغه ګړ ایي ، نو دغونډلې له پوهې د وېښنې یوون غونډله ( جمله ) ده . په بله وینا غونډله پوهه د غونډلو لوی — دغه راز دغونډلو ونو ( فقرو ) او ګړنیو ( ایډیومونو ) جوړښت او د ولونه ترکتس او وېښنې لاندې نیسي .

غونډله ( جمله ) :

غونډله د ګړونو او پیژنو یو داسې اوډ لړ غونډ ( کل ) دي چې یو بشپړ جاج ( مفهوم ) او درخه ( مطلب ) لري پوهول کیږي . په بله پلوه داچې خبري یا وینا په غونډلو کیږي او د غونډلو خبري او وینا ته ترسره کیږي . نو داسې یې هم پېژندلای شو :

غونډله د خبرو — وینا یا ګړ هغه ډېر بشپړ خپلواکه ناشنوني رغاونه ده چې تري بله ستره رغاونه نشته . په بله وینا : غونډله د خبرو او وینا تر ټولو لوی یوون ( واحد ) دي .

دغونډلې لي جوړښت :

غونډله له لوړي پړاوو برخو یا غونډو ونو ( فقرو یا ګروپونو ) وېشل کیږي چې یو یوه ته نوموال ( اسمي ) او بل ته کړوال ( فعلي ) غونډه وایي . دپاسي له مخي نوموال غونډه ته اېښي ( مسند الیه ) او مبتدا ، — او کړوال غونډه ته اېښودونی ( مسند ) یا خبر هم ویل کیږي . په اېښي کې یا کړنده له خپلو اړوندو سره راځي ( که په چاروال کړ اړه ولري ) او یا کړي له خپلو اړوندو سره ( که په بیچار کړ اړه ولري ) . په اېښودونی کې کړ او کړي دواړه له خپلو اړوندو سره راځي . په دې آړ چې کړ چاروال لیږندوي که نه یوازې کړ له خپلو اړوندو سره راځي . دکړنده او کړي اړوندونه ستاینوم — ضمیرنوم — تولنوم ( مضاف الیه ) — تولوییکس — پیژندوییکي او داسې نور ضروري وییکي کیدای شي اړ دکړ هغه کړولونه ( قیدونه ) . په دي

توګه ټول لوی اوواړه یا خپلواک (ازاد) او ناخپلواک یا ناوړیدونی ګړونه اوتوکونه په یوه غونډله کی راغونډیدای شی او د همدغو توکونو په کښوالی او زیاتوالی سره زړی یا لوی غونډلی منځ راځی .

دیوې غونډلی د ښتوالی لړه کی اړ یا بنیادی توک ګردان شوی کړ دی . که هرڅه مره ژبنی توکونه سره لږ یځ شی اوکړونه لری . غونډله له جوړ والای نشی اوبه سرچپه ډول پخپله ګردان شوی کړ دیوی غونډلی لړه کی اندازه ده لکه خورم ـ ښنم ـ ځم او داسی نور . ځینی نادوده یا غیرعادی غونډلی چی کړ ین غوړځی او بیا هم غونډلی بلل کیږی هغه بلن غونډلی یا ندائیه غونډلی دی لکه : یه پښتیانا ! یه ځلمیه ! دغه راز ـ هو ـ نه ـ ښه څنګه ـ ولی او داسی نور ... نښتو مځري هم نیمګړي یا انډي کړ شوی غونډلی دی هغه هم د خبرو اترو او دیالوګ په ډول لکه چی یووواین : ته ناروغ یی ـ بل داسی ځواب واین : هو ـ نه ـ ولی ـ څنګه او داسی نور .

اوس دیوی پوره ساده غونډلی څو بیلګی وړاندی کوو :

| | | |
|---|---|---|
| ۱ـ | ځلمی | راغی |
| | ایښی | ایښونی |
| ۲ـ | د ځلمی ورور | راغی |
| | ایښی | ایښونی |
| ۳ـ | د ځلمی مشرورور | نن کابل ته راغی |
| | ایښی | ایښونی |
| ۴ـ | د ځلمی یووروړ | نن له کندهار څخه کابل ته راغی |
| | ایښی | ایښونی |
| ۵ـ | ځلمی | لیک کاږی |
| | ایښی | ایښونی |
| ۶ـ | یوهلک | یو لیک کاږی |
| ۷ـ | یولیک | کښل کیږی |
| | ایښی | ایښونی |

په لومړۍ غونډه له کې هم اینبس (مسند الیه) له یوه ساده کړند څخه جوړ وي او هم اینبونې له یوه ساده کړ څخه . په دویمه غونډه له کې اینبس له داسې کړند (ورو ر) څخه جوړ دي چې (ځلمی) ورسره د تولنوم (مضاف الیه) او (د) ورسره د تولو ییکی په توګه اړوند (متعلق) بلل کیږي خو اینبونې لا هماغسې یو یو ستوی کړ (راغی) دي . د دریمې غونډه لی د اینبس کړند (ورور) یو ستاینوم (مشر) ـ یو تولنوم (ځلمی) او یو تولوییکی (د) د خپلواړوندونو په توګه له ځان سره ملګري کړي او په اینبونې کې کړ (راغی) له ځان سره یو مهالسې کړ ول (نن) او یو تونې کړ ول یا په بله ژبه مفعول له (کابل ته) د خپلو اړوندونو په توګه ملګري کړي دي .

د څلورمې غونډه لی په اینبس کې کړند (ورور) له ځان سره یو پیژند (یو) د (حرف تعریف) ـ ځلمی د تولنوم او (د) د تولوییکی په توګه ملګري کړي او په اینبونې کې یې کړ (راغی) یو مهالې کړ ول (نن) او دوه تونې کړولونه (له کندهار څخه) او (کابل ته) په خپلې اړوندونو کې لري . د لومړي تونې کړ ول په درو توکونو کې (کندهار) د سریل او اوستریل (له ـ څخه) په ملتیا وتونپیر (مفعول منه حالت) موندلی دي او په دویم تونې کړ ول کې (کابل) د اوستریل (ته) په ملتیا ورتلونپیر (مفعول له حالت) .

سر له پنځمې څخه د پورتنیو څلورو غونډه لو پرخلاف د نالیزند (لازمی) کړ ځای لیزند (متعدي) کړ نیسي او په دې توګه یې کړي (مفعول) ته هم اړتیا پیداشویده . د پنځمې په اینبس کې کړند (ځلمی) بنوښتوي راغلی او په اینبونې کې یې کړ (کاري) له کړي (مفعول) سره ملګري شوي او په شپږمه کې اینبس د تولنوم (عام اسم) په توګه له هلک سره د پیژندنې او ټاکنې لپاره ورسره پیژند (یو) هم ملګري کړي دي او همدارنګ د اینبونې له کړي (لیک) سره هم یو پیژند . د لومړي پیژند پرځای بل ډول پیژند (څوک یا کوم) او د دویم پیژند پرځای بــل پیژند (کوم) هم راتلای شي په بله وینا (یو هلک یو لیک کاږي) (څوک یا کوم هلک کوم لیک کاږي) سره څومره بیږ او څرنګیز (کمي او کیفي) توپیر نلري .

اوومه غونډ له بیا دپنځمی او شپږمی غونډ لی غونډي چاروال لیزندکړنه بلکی بیچار لیزندکړ لري په دي توګه ېی کړي (لیك) له خپل پیژند (یو) سره اینبی جوړ وي او (کتبل کیږي) دیوه ترښتی کړ په توګه اینبونی • دغه راز کړي (لیك) چی دکړندځاي نیسی او کړ وزبوري اړه (اسناد) پیداکوي • نوره دودیزه نومونه ېی (نائب فاعل) پولی • دادي دپوره څرګند تیالپاره دخو بیلګو غونډ لو انځور لیك (ګراف) وړاندي کوو:

۱ـ نالیزندهغونډلــه:




۲ـ چارواله لیزندهغونډ له:



۳ــ بیچاره لیزنده غونډ لـــه :




دغونډ لی رغنده توکونــــــه :

پاس مو پردوو برخو (اینبی او اینبونی) دغونډ لی ویشنه وکړه دلته غواړو په توليزډول یې ټول رغنده توکونه (گړوته) ترکتنې لاندې ونیسو او ددغو دځومره والی لمخی دغونډ لي جوليز (شکلي) ډولونه ونوموو ۰ دغه توکونه ټول آزاد یا خپلواك گړونه اوله ناخپلواکو یا تړلیو گړونو څخه یوائې ویکی را اخلی ۰ البته تاړي دازادو گړونو دنه جلا کیدونکو توکونو(اجزاوو) په توگه دغونډ لی سیده توکونه(عناصر)نه بلل کیږي په دې توگـه یې که ازاد توکونه او ړون موندلی ــ بیلیښــتی (اشتقاقی)او تړښتی (ترکیبی) هم وي دغونډله پوهی (نحوي) له پلوه بیا هم دشننی وړ نه دي بلکی هریو دغونډ لی یو یوائینی تـــوك (جز ۰) یا توك (عنصر) او یا یوون(واحد) گنــل کیږي لکه : خورم ــ خورو ــ خوړلــی ــ خوړونکی ــ خوړل ــ ورکوم ــ ورکوو ــ ورکړ ي ــ ورکوونکی ــ ورکول ۰۰۰ زمري کیدل ــ کـــول ــ لاسته راوړل اوداسی نور ۰ د ساري په ډول (زه خپلو شاگردانو ته په درنه سترگه گورم) ۰

غونډې له پهٔ نحوي ډول اته ټوکیزه بلل کیږي چې څلورین (زه – ته – په – سترګه) ساده ټوکونه (ګړونه یا ویېونه) دي او څلورین (خپلو – شاګردانو – درنه – ګورم) د اوړونې (تصریفي) تاړو په درلودلو سره اوړونې ټوکونه (ګړونه یا ویېونه) دي . یا (ځلمي یو کتاب ترلاسه کړي دي) پهٔ غونډله پوهیز ډول یوه پنځه ټوکیزه غونډله ده چې یې (ځلمي – یو – کتاب – دي) ساده ټوکونه (ګړونه یا ویېونه) دي او (ترلاسه کړي) یو تړښتی ټوک یا ګړاو یا وي . ځکه له شننې سره یې اوسنی یواځینی مانا له منځه ځي او تړښتي چاج له لاسه ورکوي .

دغونډلې ټوکونه په لاندې ډول ډلبندي کیږي :

۱– اړیا خپلواک توکونه چې تول ازاد ګړونه را اخلي . نومونه (څیزنومونه – ستاینومونه – شمیرنومونه – نومځري) – ګړونه (اړ – مرستیال یا ساده – بیلښتي – خواپرخوا – تړښتي) او کړولونه (اړ او نا اړ) دي .

۲– مرستیال توکونه . چې په دوي کې ناوړیدونې ګړونه (ویکې) راځي لکه اړیکوییکي – تړوییکي – سرېلونه – او ستربلونه او داسې نور .

۳– په دریمه ډله کې انګیوییکي – پارویکي – بلن ویکي او داسې نور راځي لومړي ډله (اړتوکونه یا خپلواک توکونه) د موضوع څرنګوالي – څومره والي – چاړوالي (فعالیت) او داسې نور جاجونه (مفهومونه) نوموي اویا ورته نغوته کوي یا په بله وینا هم ویېزه (لغوي) مانا ښندي هم پښوییزه دغه ډله اړو کړولونه پرته تول اوړیدونې ګړونه را اخلي .

دویمه ډله (مرستیال توکونه د نومونې او نغوتې پاره نه بلکې یواځې پښوییزه مانا اوچارلري . مرستیال ورته په دې وایي چې دغونډلې د اړو توکونو – غونډونو او غونډلو ترمنځ اړیکې ټینګوي .

په دریمه ډله (پارویکي – بلن ویکي ...) د نومونې پاره نلري او د بیلا بیلو ځانګړو ننګیرنو څرګندونه کوي پارویکي لکه دخوښي (واخ – وخ – اوخ ...) یا

۱ــ یو سړی ــ راغی یا : یوه سړي ــ ډوډۍ وخوړه •

۲ــ یوغټ سړی ــ راغی یا : یوه غټ سړي ــ ډوډۍ وخوړه •

۳ــ دخلمی مشرورور ــ ولاړ یا : دخلمی مشرورور ــ وینا وکړه •

٤ــ دخلمی دوه ورونه ــ ولاړ ل یا : دخلمی دوو ورونو ــ وېناوي وکړي

٥ــ دخلمی دوه مشران ورونه ــ ولاړ ل یا : دخلمی دوومشرانو ورونو ــ وېناوي وکړي •

٦ــ زما یو کشرورور ــ کورته ولاړ یا : زما یوه کشرورور ــ واده وکړ •

په اینبونی کی کړ(آریا مرستیال) ترنورو توکونو وروسته راځی که دغه کړ له دووغبرګو (آر او ناآر) کړ څخه جوړ وي نو آر تر مخه او نا آر(مرستیال ) وروسی بیخی پاي ته راځی • تر کړ (اریا مرستیال ) دمخه کړي (که کړ چاروال لیزندوي ) او کړي بیا له خپلو اړوندونو وروسته ځاي نیسی • کړ ول (که چیري وي ) زیاتره تر کړي دمخه راځی خو که دوه کړولونه په یوه اینبونی کی راغلی وي او یو مهالی اوبل تونی یا بل ډول وي نوزیاتره مهالی له تونی یابل کړ ول اوکړي څخه مخکی کیږي • تونی یا بل کړ ول بیا کیدای شی تر کړي وروسته ځاي ونیسی لکه په دي لاندي غونډ لو کی :

۱ــ زمري ــ نن ازمونه ورکړه •

۲ــ زمري ــ (نن ) (په بریالیتوب سره) ازمونه ورکړه •

۳ــ زمري ــ (نن ) ( له خپل ورور سره) ( له کندهاره) (کابل ته) راغی •

په پاسنیوغونډ لو کی (نن ) مهالی کړول دي (په بریالیتوب سره) او (له خپل ورورسره) خرګندنی او (له کندهاره) او(کابل ته) تونی کړولونه دي • همداراز ( ازمونه) او (خپله ازمونه) کړي (مفعولــــونه) بلل کیږي •

دغونډ لی بشپړ اند توکونه :

سرییره

یوه غونډ له پربورتنیو نومول شویو توکونو ځینی بشپړ اند (متمم) توکونه هم لري لکه اخج ــ اهنګ ــ بیلتون اوپیوستون اودغونډ لو دپاي غاړه (لحن) • دغزپوهی له مخــــ

دغه ځانګړ تیاوي(خصوصیات) د ویمنی اوازونه(فونیمونه) بلل کیږي چې د لومړیو یا اروااوازونو (لکه ا ــ ب ــ پ ــ ت ــ ټ ... ي ) غوندې دګړ هار په بهیر کې د پرله پسیوالی یا تسلسل (لینیال )لوښه نلري او دغونډ له پوهې له مخې هماغسې مانیز او چاریز (تعاملی یافنکشنال) نقش او اغیز لري لکه ارتو کونه (ګړ ونه) ځکه دغونډ لو مانیز اوینبویز ډولونه سره توپیروي .
نوله دي کبله خج ــ اهنګ ــ بیلتون او پیوستون اودغونډ لو د پای غاړ ه (لحن ) د غونډ لی بشپړ اند توکونه بلل کیږي .

ا ــ اهنــــــګ :

دغونډ لو اهنګ څلور ډوله دي : خبري اهنګ ــ پوښتنی اهنګ ــ هیښنی اوبلنی (تعجبی اوندایی ) اهنګ او امري اهنګ . په بله وینا خبري ــ پوښتنی ــ هیښنی اوبلنی اوامري غونډ لی سره د خپلو ځانګړ و اهنګنــو په مرسته توپیریږي .(۱)

ا ــ دخبري غونډ لی اهنګ اوار پیل کیږي اوبیا غورځیدلی پروت پای ته رسي لکــه : زمري ــ راغی .

۲ــ د پوښتنی غونډ لی اهنګ ټیټ پیل موس او بیا نیغ شوي پروت پای ته رسي لکـــه : زمري ــ راغی ؟
که په سرکی یې پوښتنو مخري یا پوښتوییکی راشی بیانو اهنګ په سرکی لوړیږي .
۳ــ د هیښنی ــ بلنی ــ ګومانی اوداسې نورو غونډ لو اهنګ کابو یوراز راځـــی اوهغه داچې ټیټ پیلیږي بیا پورته ځي اوبه پای کې ریب پای ته رسیږي لکه :

زمري ــ راغــی !

۲ــ خــــج :

لکه څنګه چې په غږ پوهه کې ورته نغوته وشوه . غونډ له یېز خج هماغه پیاوړ ي خج دي چې د نورو توکونو په ترڅ کې یې پربوه راشی اوهماغه خجن توک تر نورو توکونو زیات موخن

---

ا ــ دلته له پوهاند الهام څخه الهام اخیست شوي (روشی جدید د رتحقیق د ستور زبان دري ۱۴۲ ــ ۱۴۴ مخونه ــ همد اراز د زیار د ژبپوهنی بنسټونه هم د پاملرنی وړ دي .

(مطلوب ) ښيي ۰ نور ټوکونه یاهیڅ خج نلري اويا دهماغه يوه پياوړي خج تراغيز لاندي کمزوري ويل کيږي ۰ په دي ډول دري رازه غونډ له ييز خجونه سره توپيروو ۰ پياوړي – لږ پياوړي او کمزوري لکه دا ولميريه دي سندره کي ( ستاد سترگو بلا واخلم بيا دي سترگي ولى سري دي ) پر ( ولی ) پياوړي – پر ( واخلم ) لږ پياوړي او پر ( سترگو ) کمزوري خج اوريدل کيږي ۰

۳– بیلتون او پيوستـــــون :

بیلتون او پيوستون د امانا چي دغونډ و يا غونډ لو دپاي ویینه سره پيوست اوبی لارغه ( بي‌مکثه ) وويل شي اويا سره ناپيوست په لارغه ( مکث ) ۰ په دي توگه که کله دهماغو يوراز غونډ و يا غونډ لو ترمنځ بیلتون پرپيوستون بدل شي اويا سرچپه ۰ نو هغه جاج او مانا يي سره نه توپيريږي چي دويونکي موخه او مطلب وي ۰ داچي دغه بيلتو ن او پيوستون يوائحي دنحوي يوونو ( واحدونو ) ترمنځ نه بلکي دغږپوهيزو هغو ترمنځ هم نقش او اغيز لري نودخج آهنگ اوغاړي ( لحن ) غوندي بیلتون او پيوستون له اره دويمی اوازونه ( فونیمونه ) دي ۰ بیلتون او پيوستون دليکونکي په دي کرۍ ( بيت ) کي ښه تراجوتيږي :

کړي که بخشش د وصل رازياره – زړه سوزول پرما ملنگ ښـــــــه دي ۰

دلته که ( ز ) له مخني وييي ياپه بله وينا له مخني اواز ( الف ) سره پيوست وويل شـــ مانا يي دا شي راتحي چي ( يه يارة ! ) که ماته ( دوصل راز ) را بخشش کړي اوکه نه ( ز ) له ( ياره ) سره پټليزه وويل شي يا په بله ژبه د ( الف ) او ( ز ) ترمنځ بیلتون او – لارغه راوړل شي بيا د امانا ښندي چي ( يه زياره ) که ماته ( د وصل بخشش ) راکړي په د ي توگه که دمخني مانا موخه وي ۰ په کار دي د ( راز ) او ( ياره ) وييونو ياپه بله وينا د ( ز ) او ( ي ) ترمنځ په وينگ ( تلفظ ) کي لارغه او بیلتون او له بله پلوه د ( الف ) او ( ز ) ترمنځ پيوستون راشــــ ۰ او که وروستی مانا موخه وينو په کار دي د ( را ) او ( زياره ) ياپه بله وينا د ( الف ) او ( ز ) ترمنځ لارغه اوبیلتون اوله بله پلوه د ( ز ) او ( ي ) ترمنځ پيوستون راشي ۰

او که وروستی مانا موخه وی‌نو په کار دي د ( را ) او ( زیاره ) یا په بله وینا د ( الف ) او ( ز )

ترمنځ لارغه او بیلتو او له بله پلوه د ( ز ) او ( ي ) ترمنځ پیوستون راشي . په دي ډول

ترموري نیم بیتي یا غونډه له دوه رازه کاږو :

دلومړي مانا له مخې : کړي که بخشش دوصل راز ــ یاره !

د دویمې مانا له مخې : کړي که بخشش دوصل را ــ زیاره !

همدا رنګه د راډیو افغانستان دخبرلو ځانګړي ځایه بیلتون او پیوستون په دي وروسته غونډلو

کي څومره مانیز بدلون پیښوي : دجنوبي افریقا صدر اعظم جان ــ فورسترو ویل ــ دنیپال پاچا

دیوانن ــ خپل هیواد ته ستون شو . په دي توګه ( جان ) دصد راعظم توك ګرځي نه د فورستر

او ( نن ) د ( دیوا ) توك ګرځي نه د پرجلاوي ( کړول ) . لیکښې د نور غونډي د همدا راز د ویښیو

تمکونو ( څپ ــ اهنګ ــ لحن بیلتون او پیوستون .... ) سمبولونه بلل ګیږي .

د اینې او اینونې سمون :

د اینې او اینونې ترمنځ همغه سمون مطلب دي چي دګنې ــ نوزي او وګړي

له مخې دکړند یا کړي او کړ ترمنځ راځي . دګنې له پلوه سمون داچي که کړند یو ګړي وي

نو کړ ورسره یو ګړي راځي او که کړند ډیر ګړي یا ډیر ګړي ډول ( لکه جنس ) وي . کړ

ورسره ډیرګړي راځي دنوزي له پلوه داچي که کړند ښځینه وي کړ ورسره ښځینه کارول کیږي

او که کړند نرینه وي کړ ورسره نرینه کارول کیږي او دوګړي له مخې سمون داچي کړ باید له

هر یوه وګړي ( لومړي ــ دویم ــ درېیم ) سره سم وکارول شي نه داسي چي دلومړي وګړي کړ

د دویم وګړي لپاره په کار واچول شي او داسي نور . لکه په ګړپوهنه کي موچي ولیدل دغه دود

( قاعده ) بیدودي ( استثناء ) لري لکه پچاروال لیزند تیرمهال کي چي کړ دکړند نه بلکي

دکړي ( مفعول ) اړزند ( تابع ) دي په بله ژبه دګنې ــ نوزي او وګړي له مخې کړ له کړي سره

سمون خوري‌نه له کړند سره . همدا راز دغه سمون په اوس مهال کي یواځې دګنې او وګړي له

پلوه څه ناڅه ریښتینوالی‌موي مګر دنوزي له پلوه هیڅ نه . په دي وروسته غونډو لوکي د اینې

او اینونې ترمنځ سمون له ټولو استثناګانو سره لیدای شو :

۱ــ ناليزندتيرمهال :

۱) زه ــــ راغلم

۲) ته ــــ راغلی

۳) دي ــــ راغی

۳) دا ــــ راغله

٤) موږ ــــ راغلو

٥) تاسو ــــ راغلاست

٦) دوي ــــ راغلل

٦) دوي ــــ راغلې

۲ــ ليزند تيرمهال (چاروال) :

۱) ما ــــ خټكې وخوړ

ما ــــ خټكي وخوړل

ما ــــ هندوانه وخوړه

ما ــــ هندوانې وخوړې

۲) تا ــــ خټكې وخوړ

تا ــــ خټكي وخوړل

تا ــــ هندوانه وخوړه

تا ــــ هندوانې وخوړې

او همداسې د دريم وګړي لپاره .

۳ــ ليزنـــد تيرمهال (بيچار) :

۱) زه ــــ وخوړل شوم

۲) ته ــــ وخوړل شوې

همداسې ترپايه .....

۴ـ ناليزند اوسهـال :

۱) زه ـــــ ځم

۲) ته ـــــ ځې

۳) دي ـــــ راځي

...... همداسې ترپايه .

۵ـ ليزند اوسهال (چاروال) :

۱) زه ـــــ ډوډۍ خورم

۲) ته ـــــ ډوډۍ خورې

۳) دي ـ دا ـــــ ډوډۍ خوري

...... همداسې ترپايه .

۶ـ ليزند اوسهال (بيچار) :

۱) زه ـــــ خوړل کيـــــږم

۲) ته ـــــ خوړل کيږې

۳) دي ـ دا ـــــ خوړل کيږي

...... همداسې ترپايه .

نوموالـه او کړ واله غونډ لـــــه :

که ديوې غونډ لې په اينبونې کې د اَريا مرستيالکړ (لکه خوړل ـ کيدل ـ شول) پرځاي يواځې (دي ) اَريا د دغه مرستيالکړ نوري بڼې او ډولونه راشي . هغه غونډ لـــه (نوموالـه) غونډ له بلل کيږي که نه کړ واله غونډ له. لکه زرين ـ روغ دي يا و ـ يا : هلکان ـ ناروغه دي يا و . زرينـــه ـ ناروغه ده يا وه يا : نجونې ـ ناروغې دي يا وې .

دغوندې لی مانیز ېولرنـــه :

غوندې لـــی دکړ دودله مخی په خبري یا بیانیی اوناخبري‌یا انشایی اویاالتزامی غوندې لو ویشل کیږي .

١ــ خبـــــري :

١ــ ببرك ـــــــ ولاړ

٢ــ ببرك ـــــــ تللی دی

٣ــ ببرك ـــــــ تللی و

٤ــ ببرك ـــــــ تـــه

٥ــ ببرك ـــــــ ځـــی

٦ــ ببرك ـــــــ به ولاړ شـــی

.... او داســـی نور .

٢ــ ناخبـــــــري :

١ــ ببرك ـــــــ ولاړ ؟ (پوښتنی)

٢ــ ببرك ـــــــ ولاړ ! (هیښنـــی)

٣ــ ببرك ـــــــ به تللی وي ! (گومانی)

٤ــ (کاشکی)ببرك ـــــــ به تللی وای ! (ارمانی)

٥ــ ببرك ـــــــ د ي تللی وای ! (ټینگاري)

٦ــ (که) ببرك ـــــــ تللی وي (اړوتی)

٧ــ ببرکـــه ـــــــ ځـــه ! (امري)

٨ــ ببرك ـــــــ به ولاړ شی (گمانی او ټینگاري)

...... او داسی نور .

دغونډ لی‌جولیز ډولونه :

دجولی او شومره والی له مخی غونډ له یو ستوي‌وي یاغبرگه ـ یاگډه اویاگډ لی •

۱ـ یوستوې‌غونډ له هغه رازغونډ له د ه چی له دووغونډ ونو ( اینس او اینونی )

څخه جوړ ه وي لکه :

ځلمی ـــــ ییوه کوي

پوغښتلی سړي ـــــ په ځغاسته راغی

دکندهار انار ـــــ خوازه دي

بوره ـــــ نشتـــه

: ۰۰ اوداسی نوري • یوستوي غونډ له دنورو دړو ډولو پنسټ بلل کیږي •

۱) ایه‌یو ستوي‌غونډ لهچی یی اینس ،له‌یوه ( کړند ) یا کړي او اینونی له

یوه (کړ ) ـ او دلیږندپه ترڅ کي ـ له یوه (کړ ) څخه جوړوي اوددوده مخی ددغو

دړو واړو توکو(کړ ـ کړند ـ کړن) اړوندونه له دوو توکسو څخه تیري ونکړي لکه :

زمرک ـــــ ځـــي

زرک ـــــ اویه ځښـــي •

یوه نجلی ـــــ یو لیکی لولی •

یوه ښکلی نجلی ـــــ یـــوپنډ لیکی لولی

زما یو ملگري ـــــ هیڅکله خپل کورنی کار نه هیروي

۲ ) ارته یو ستوي‌غونډ له چی په اینس یا اینونی یا دواړ وکی دکړ ـ کړند یاکړي

یادرووار و اړوندونه له دوود وو توکونو څخه تیري وکړي اوپه دي توگه پکـــس

زیات ارتوالی راشی لکه : دعراق دعربی جمهوریت رئیس‌حسن البکر ـــــ په بله میاشت د

افغانستان دجمهوري دولت پایتخت مرکز کابل ته راشی •

یا : دافغانستان دجمهوري دولت یوه کلتوري ډله ـ دشوروي اتحاد دپوهنو داکادمی په بلنه

هغه هیوادته سفرکوي ۰۰۰ اوداسی نوري

٢ـ غبرگڅونډ لــــه :

غبرگڅونډ له هغه ده چې دیوه اینبنی او یوه اینبونی پرځای دوه دوه اینبنی او اینبونی ولري یا په بله وینا که دیوې پوهونی او مطلب د بشپړتیا یادوو اړوند و مطلبو دڅرګندونی لپاره سره دوې غونډ لی په کوم اړیکوییکی یا لارغه (مکث) غبرګی اوملګري شي. یوه غبرگڅونډ له منځ ته راوړي . داړیکوییکو دډولونو له مخی سره ډول ډول غبرگڅونډ لی توپیرولای شو دغبرگڅونډ لی په دواړو بیلا بیلوغونډ لوکی یوه اره یا خپلواکه اوبله څرمه (فرعی) یا بیواکه غونډ له بلل کیږي . اره یا خپلواکه په دي مانا چی ار مطلب او موخه پکی څرګندیږي اوځانته په خپلوبنود ریداي شي . څرمه یابیواکه په دي مانا چی ار مطلب اوموخه پکی نهڅرګندیږي اوځانته پخپلو پښو دریداي نشي په دي توګه په یوه غبرگڅونډ له کی بیواکه یا څرمه له خپلواکی یااري سره دیوه مطلب په څرګندونه کی مرستیاله او بشپړوونکی اوسی . داړیکویکو له مخی د غبرگڅونډ لی ډولونه په لاندي توګه ښوول کیږي :

١ـ تړ غبرگڅونډ له : چی دواړه یوستوي غونډ لی پکی په یوه تړوییکی (او) یا لارغی سره یو ځای شوي وي لکه :

زما زوي اووه کلن (دي) او لورمی شپږ کلنه ده .

یا : زما زوي لس کلن دي اوستا لور دولس کلنه (ده).

٢ـ اړوتی غبرگڅونډ له : چی یی یوه (زیاتره لومړۍ) یوستوي غونډ له بیواکه او بله (زیاتره دویمه) خپلواکه وي . په دي توګه دلته بیواکه غونډ له آړ (شرط) بلل کیږي او خپلواکه اړوتی ، لکه :

که ته راشي ــ زه به راشم .

که وریځ سپینه شي ــ باران کیږي .

که شمال نه وي ــ ونه نه ښوري .

دکه په وړاندې داړوتی غونډ لی په سرکی د (نو ) اړیکوییکی هم راتلای شی

لکه : که شمال نه وي — نو ونه نه ښوري .

۳— توسنی (علتی )غبرګغونډ له : چی یی دواړه یوستوي غونډ لی سره په یوه

یاغبرګو توسنو ییکو( ځکه — ځکه چی — چی — داچی — په دي چی — نو . . .) غبرګی شوي وي .

په دي ډول خپلواکه توسنی (معلوله ) اوبیواکه توسن (علت )غونډ له نومیداي شی لکـــه :

زه راغلم — ځکه تابللی وم یا : زه راغلم — پـــه دي چی تابللی وم .

تابللی وم — ځکه راغلم یا : تابللی وم — نو ځکه راغلم .

ځکه راغلم — چی تابللی وم یا :ځکه راغلم — په دي چی تابللی وم .

داچی تاویلی وو— نوراغلم یا : ځنګه چی تاویلی وو — نو ځکه راغلم . . . .

٤— څرګندنی ( بیانـــی )غبرګغونډ له : چی دویمه مله غونډ له دلومړۍ هغـــی

دزیاتی څرګندتیا لپاره وي اوڅیوي پوښتنی ځواب وایی : د دغـــی څرګندتیا دڅرنګوالی له مخی

داالاندې کوچنی ډولونه دیادولو دي :

۱) موخنه یامرامی څرګندنی غبرګغونډ له : چی په خپلواکه غونډ له کی د راغلی مطلب

یا پیښـــی موخه په بله څرمه غونډ له کي څرګند ه شی لکه :

سنك ایران ته ولاړ — چی ځانته کار مزدوري پیداکړي .

زه راغلم چی تاووینم . . . . .

۲) مهالی څرګندنی غبرګغونډ له : چی لومړۍ (بیواکه)غونډ له د دویمی (خپلواکی )

غونډ لی څرګندکړي چار اوپیښی مهال اووخت تاکی لکه :

چی ته راغلی — زه به ولاړ شم یا : چی ته راغلی — نو زه به ولاړ شم

کله چی ته راغلی — زه به ولاړ شم یا : کله چی ته راغلی — نو زه به ولاړ شم

سم چی ماوریرانیست — پرهغی می سترګی ولګیدي .

زه به هله درشم — چی ته می وغواړي .

یا : زه به هله درشم — هرکله چې تا وغوښتم

هومره به دي مږ نکړم — څو دي رنګ دمړي نکړم

هله به خبرشې — چې تاروجبې له ورشې !

هله به دي په یادشي — چې دي یودبوال ته مخ بل ته دي شاشي !

۳) تونې څرګندنې غبرګغونډوله : چې څرمه غونډه له یې داري لپاره تون(ځاي )

وټاکي لکه : چیري دي ښه نه هلته دي شپه !

چې نه کار — هلته څه کار یا ؛ چې دي نه کار — هلته څه کار !

چې له کومې راغلی یې — هغه ته پرهماغه ځه !

چیري چې اوسې — په خوي به د هغوي شې یا : چیري چې اوسې — په خوي به

دهغوي اوسې !

یاد پرد یو ژبو په بې ځایه پیښو لکه :

د هند جمهوررئیس شوروي ته ولاړ — (چیري ) چې له شوروي مشرانو سره خبري کوي

دلته (چیري )یو زیاتی توك دي • البته له (چې ) سره (کوي ) نه بلکې ( وکړي ) راځې •

• (تون ) د زیاتې څرګند تیا لپاره له (چې) سره (هلته )هم بلګري کیداي شي لکه :

د هند جمهور رئیس شوروي ته ولاړ چې هلته له شوروي مشرانو سره خبري کوي •

٤) وګړیزه څرګندنې غبرګغونډه له : چې په دواړو ملوغونډو لوکې راغلې کړندیاکړي

یو (وګړي )وي لکه :

څوك چې خوبکړي — نر کټې به زیږوي •

یا : دنورو ژبو په پیښو په نا سم ډول :

ځې ، هغو خوارو ته جنت وګټو — ( څوك ) چې له موره دوزخیان پیدادي

دلته دا پایله اخیستلای شو چې (څوك ) د (چیري ) — (کوم ) — (څه ) —(ګله) اوداسې نورو

څرګندنې اړیکو ییکړغونډي یواځې دهماغې څرمه غونډه لې په سرکې له (چې ) سره راتلاي شي

چې تر اري د مخه وي دغه توپیر په تیرو دواړو ساریو (مثالو) کې ښه ترا لیداي شو •

۵) ځیزواله څرګندنې غبرګفونډوله : چې په دوار وملوغونډو لوکې راغلې کړندونه یا کړي یو (ځیز) وي لکه :

څه چې کړي — هغه به ریبي

څه چې وي — هغه به وي

۶) کړولې (قیدي) څرګندنې غبرګفونډوله : چې د دوار وغونډو لواړیکو پیکس کړو لونه وي لکه :

اسري څه — ژړاځه

یاد دي لنډۍ دیمه برخه : پراویو غرو د خدای نظر دي — پرسرپې واوري — پرلمن یې زیرګلونه

۷) پرتلیزه څرګندنې غبرګفونډوله : چې د دوار وملوغونډو لو اینې سره داړیکو پیکو په وسیله اندول — پرتله یا همځیر شوي وي لکه :

ځنګه دیګ — هسې تبیسریا : هسې یې تبیسر (کړپرینوول شوي)

ځنګه غر — هسې یې کریوړي (کړ پرېښوول شوي)

یو یې ګټې — سل یې ښتې

سل دي ومره — یونډي مه مره

یا : سل دي ومره — د سلو سردي مه مره

سل پتنګان سرځي — دیوي شمې ژړا سره

۸) اړپیچنه (متضاده) څرګندنې غبرګفونډوله : چې داري اوځرې څرګندونې یا اینې سره اړ پیچ یابه والي (تضاد یا تقابل) ولري لکه :

که څه هم بازیارایستلی نه و — (خو) بیاهم بریالی شوم

سره له دې چې ناروغ وم — پوهنځی ته راغلم

یا : سره له دې چې ناروغ وم — خوبیاهم پوهنځی ته راغلم

یادیوی‌ارتی یوستوی غونډ لی په بنه :

له ناروغی سره سره پوهنځی ته راغلم .

لهولسه وو ځــــه ــ له نرخه مه ووځـــه

که غر لوی دی ــ پرسرین لارده

خپل خپل دی ــ پردی په ډیرو نارو خپل دی

دښمن به دی وخندوی ــ دوست به دی وژړوی

شمه که سوزیږی رڼـا هم لری (کوره په خندا کی ژړا هم لری )

۹) سرغاړي (منصرفه ) څرګندنی غبرګغونډله : چی دویمه (څرمه)غونډ له یی دلومړۍ (اړي ) له څرګدونی څخه سرڼړوی او نور زیات څه څرګند کړی لکه :

ځلمی ګرم نه دی ــ بلکی زمری‌ګرم دی

یا :ځلمی ګرم نه دی ــ چی زمری‌ګرم دی

۱۰) بشپړانده څرګندنی غبرګغونډله : چی دویمه (څرمه)یی ددویمی (اړي) دجاج (مفهوم ) په بشپړو لو یا پراخولو کی مرستیاله اوس لکه :

خوشال خټـک‌نه یواځی شاعرو ــ چی تورزن هم و یا :بلکی تورزن هم و .

یا :خوشال خټك یواځی شاعرنه و ــ چی تورزن هم و یا :بلکی تورزن هم و .

یا :خوشال خټك لوی شاعرو ــ چی لا اتل هم و .

دلته ګورو چی (نه یواځی ) د (چی هم)یا (چی لاهم) اویا (بلکی هم) په ملګرتیا ددواړو غونډ لو اړیکی ټینګوی یاپه بله وینا (نه یواځی ) او(چی هم)یا (نه یواځی ) او(چی‌لاهم ) یا( نه‌یواځی ) او( بلکی هم ) ددواړو ملوغونډ لو ترمنځ دبشپړتیا اړیکی څرګندوی .

همدومره خبره ده چی که دپورویں ( بلکه یابلکی ) له کارونی‌څخه ډډه وشی نودپټـــو (جبران )لپاره یی په هماغه څرمه‌غونډ له کی دایښی پرار توك باندی یو پیاوړی څخ راوړل په‌کاردی‌چی له همدغه څخ سره اهنګ هم پتلیز (جوخت) لوړولاړ شی .

۲ــ ګډه غونډه لــــــه :

ګډه غونډه له هغې ته وايي چې په هغه کې له دوو نه زياتې غونډې لې پرله پسې راغلې وي او څرګندونې يې سره يو له بله کوم ډول اړيکې او اړوندې ولري . او د اچــــې هماغه يوه يوا ځينې مطلب د بيلا بيلو ملو غونډو له مخې په بيلا بيل ډول څرګنديدنه موندلې وي . تر زياتره يې يوه غونډه له خپلواکه يا اړه وي او نورې ټولې ملې ورسره بېواکه يا څرمه وي . په ګړتې ( محاوروي ) پښتو کې ګډې غونډې لې زياتره له دوو غبرګغونډو څخه جوړې وي چې په دې ډول په دوازو يو ځاي شوو غبرګغونډو کې د اړو او څرمو غونډو شمير يو پر يو وي لکه په لاندې يو کوي:

بنه دې چې بېترګې دې وريدې — که چيرې غنمې واي خوړلاي به دې ومه
يارې د کوټ زه د تيرا يـــــم — خدايه کوټ وران کړې چې جوړه تيراله څومه

په لومړۍ لندۍ کې لومړي برخه (مسره) يوه غبرګغونډه له ده چې اړه غونډه له يې ښکې پېږخـــه او څرمه ورپسې ده . دويمه برخه (مسره) يوه بله غبرګغونډه له ده چې څرمه غونډه له له اړې غونډې لې ترمخه راغلې ده . داچې په لومړۍ مسره کې دويمه ( څرمه ) غونډه له په څرګندونې وييکـــې ( چې ) پيل شوې نو ټوله لومړۍ مسره يوه څرګندونې غبرګغونډه له بلل کيږي او داچې په دويمه مسره کې لومړۍ ( څرمه ) غونډه له په اړوييکو (که چيرې ) پيل شوې نو ټوله دويمه مسره يوه اړوتې غبرګغونډه له ده . د دوازې مسرې (غبرګغونډه لې ) سره بيا په يوه توښې اړيکې — چې په لارغه څرګنديږي — يوه ګډه غونډه له جوړوي . نو له دې پلوه زموږ يادښې لومړي لندۍ يوه توښې ګډه غونډه له ده چې يې دغړيو غونډو شمير څلوروته رسيږي . او لومړۍ يې ( بنه دې ) اړه غونډه له بلل کيږي او که دغې لندۍ ته د دوو غبرګغونډو په سترګه وګورو نو لومړۍ غبرګغونډه له (لومړۍ مسره) اړه او دويمه غبرګغونډه له (دويمه مسره) څرمه ده . د دويمې غبرګغونډې لې بيا دويمه ملغونډه له (خوړلاي به دې ومه) اړه يا اړوتې او لومړۍ هغه يې (که چيرې غنمې واي ) څرمه ( اړ ) بلل کيږي .

او داهم دلومړۍ لنډۍ (ګډې غونډه لی) لنبتیلیک (جدول):

له پڅ اینس سره اره ... | اینسونس — اړیکوییکی — اینس | اینسونس — خرمـــه — لارغـــه ... | اینسونس — لهپڅ اینس سره خرمـــه — اړیکوییکی اینس | اینسونس — اره

لارغه

لومړی خزګدنس غبرګغونډه‌له — دویمه اړوتی غبرګغونډه لـــــه

توسنی ګډه غونډه لــــــه

همداراز دویمه لنډۍ دیوي ګډي غونډه‌لی په توګه جوتولاي شو او هغه داچی داهم یوه توسنی ګډه غونډه‌له ده مګر په همدومره توپیرچی دلته توسنی غبرګ غونډه له تړلی (تړغبرګغونډه‌لی) دمخه شوې ده. اویل داچی تړتولو وروستی غونډه له‌یی اره ده او په دې توګه ټوله دویمه غبرګغونډه‌له (مسره) دلومړۍ غبرګغونډه‌لی (مسرې) په وړاندې اره پلل کیږي په دې ګډه غونډه له (لنډۍ) کی دلومړي ملې غونډه لی (یارمی — دکوټ) اینسونس د (د) په غورځونه چی یوه شعري اړتیاده نیمګړي دي. دغه راز دخلورمی (اري) — اینس خپلواکه جوله نلري اوداچی دلومړۍ غبرګغونډه‌لی دواړي ملې سره په یوي لارغی تړل شوي یا عطف شوي دي نویوه تړ غبرګغونډه‌له بلل کیږي.

داهم ددغی دویمی ګډې غونډه‌لی (لنډۍ) لنبتیلیک:

اینس | اینسونس (بی کره) — خرمـــه — لارغه — اینس | اینسونس — خرمه — لارغـــه — اینس | اینسونس — خرمـــه — اړیکوییکی ... | اینسونس — بی اینس اره

لارغه

لومړۍ خرمه تړ (عطف) غبرګغونډه‌له — دویمه اره توسنی غبرګغونډه لـــــه

توسنی ګډه غونډه لــــــه

یادښت: پرتوسنی ګډې غونډه لی سربیره نوري راز راز ګډي غونډه لی هم پیداکیداي شی تشبیهی لکه دښکارندوي په دې کرۍ کی:

هرلودګلووزم دي لونلـــی — ته واراغله له ختـــه کاروانـــونـــه

یاد حمید دغه لندۍ :

سینه مې دیگ زړګی مې غوښې ـ اوښکې اوبه دي بیلتون اورېس کوینـــه

٤ـ ګډلې (مختلطه) غونډ له :

ګډلې غونډ له هغه ده چې دیوې یوستوې غونډ لې په منځ کې یوه یازیاتې څرمه غونډ لې ورننوتې وي ٠ دغه راز څرمه غونډ لو ته منځپینې (معترضه) غونډ لې ویل کیږي ٠ جوړښتیې داچې داري غونډ لې تراینې ( مسندالیه ) یا دهغه ترکومې برخې وروستـه دهماغه اینې یا برخې په اړیکې (ارتباط ) یوه یا زیاتې غونډ لې په څرمه ډول راشي او بیا داري غونډ لې پاتې برخه ترټولو پاي ته راووځې ٠ په ګړنې پښتو کې ګډ لې غونډ لـې ډیرې لږي کارول کیږي اوهغه هم په دومره پیچلې بڼـه نه ٠ داماناچې نه اره غونډ له پکې دومره ارته وي اونه پکې منځپینې ترېوې زیاتې وي او هغه یوه هم دومره ارته نه وي که نه په غبرګو اوګـډ وغونډ لو اړ ول کیږي ٠ دلته لومړي ګړنې اوبیا لیکنی پښتو څخه دګډ لو غونډ لو بیلګې را اخلو :

۱) زه چې کورته ځم ـ رخصت اخلم ٠

۲) ځلمي چې پرون راغلی و ـ ما ونه لید ٠

۳) ما پروفیسور مورګن سیترنې ـ چې داوروستی ځل کابل ته راغلی و ـ ونه لید

یادغبرګې غونډ لې په ډول : ما داوروستي ځل پروفیسور مورګن سیتـرنې ونه لید ـ چې کابل ته راغلـــــې و ٠

٤) خوشال خټک ـ ځوا تردې چې په ګوالیارکې بندي شي ـ له اورنګ زیبسره په داسې میړانه ـ چې ساري یې نه درلود ـ جنګ وکړ ٠

دایوه دوه اړخیزه ګډ لې غونډ له ده په دې توګه چې دلومړۍ اري غونډ لې (خوشال خټک له اورنګ زیب سره په میړانه جنګ وکړ ) دوه منځپینې غونډ لې راغلې دي چې لومړۍ یې ( په ګوالیارکې بندي شي ) داینې (خوشال خټک ) په ګوالیارکې بندیکیدل څرګندوي اودویمه یې

( ساري‌یس نه درلود ) د ایښوني ( جنګ وکړ ) دیوه کړ ول ( په میړ انه ) څرګندږي اوبیا وړ ي‌کوي •
(پخواتري — چې ) او( داس — چې ) د درو واړ و ملو غونډ ولو ترمنځ دا ړ یکو ییکو دند ه
پرځاي کوي لومړي زماني اړیکې او دویم څرنګیز اړیکې •

دلته وینو چې داري غونډ لی ایښی (خوشال ختك ) له خپل ایښوني (جنګ وکړ ) یوناد ود ه
لرېوالي لري نو په دي لاندي ډول دغه لرېوالی له منځه وړ لاي شو :

خوشال ختك — پخوا تردې چې په ګواليارکی بندي‌شي — له اورنګ زیب سره
په داسي میړ انه جنګ وکړ — چې ساري يې نه درلود •

دننې کاښیزري نړ ي په غونښتنو او اغیزو سره دغه راز غونډ لی په (( لیکن )) پښتو
کی مخ پرزیاتید و او پیچلی کیدود ي‌لکه :

٥) دیونان نومیالی فیلسوف اپلاتون — چې په اسلامي نړ ۍ کی دلوي نامه
خاوند شو — دلویدیزې نړ ۍ لومړي پوهاند دي — چې دژبي دبنسټ او څرنګوالی په باب يې
فلسفي څیړ نه کړ یده — اوله دي لامله دلویدیزې نړ ۍ دژبپوهنې پرانیستو نی اود پرله‌غښتې
ګرامر برسیروني ګڼل شویدي •

٦) دیونان ستري جنګې بوللې یا حماسې (( ا یلیاد او اودیسې )) چې سپیځلي
ګڼل کیدي په خورا لرغونو زمانو کی په داسي یوه ژبه او سبك‌کښل شوي وې چې کابو نابومه
(نامانوسه) شوې وې ( الهام : وزمه — ٦ ګڼه ١٣٥١ ) •

په پنځمه‌ګڼ لي غونډ له کی یوازې (دیونان نومیالی فیلسوف اپلاتــــــــــــون
ـــــــــــــــــــــــــــــــه اسلامي نړ ۍ کی‌دلوي نامه خاوند شو — دلویدیزي
نړ ۍ لومړي پوهاند دي ) ریښتینې ګڼ لي غونډ له جوړ ه کړ ي — ځکه دیوي اري ترمنځ یوي
منځپیښی غونډ لی ځاي نیولی دي — او وريسې نوري دوي ورسره په څرګندني اړتوښنـــي
بنــه دزیاتې څرګندونې لپاره ملګري‌شوي دي •

## گړنــــــې یا اصطلاحـــــات (IDEOMS)

په‌غونډ له پوهه کې موتراو سه دوینا بشپړ یوونونه (واحدونه) یاپه بله ژبـــه غونډ لی وخیړلی اوپه ترځ کی مو واړه واړه وړی غونډونه یا لغوي ګروپونه (فقري) چې دګړنو (ایدیمونو) په نامه بلل کیږي •

پیژندون (تعریـــــف) :

یوه ګړنه یوداسې وړی غونډ دي‌چې دراز راز مانا لرونکو (دوویاډیرو) ویـــو اوویکو څخه منځ ته راغلی وي اوپه ژبه کې یو نا اټکل کیدونکی لرغونتوب لري • یوه ګړنه تل په‌جولیز ډول یوناشنونې او ټینګ یووالی نه وي خوپه مانیز ډول بوناشنونی غونډ (مجموع) ګڼهل کیږي • په بله وینا یوه ګړنه دداسې ویوغونډ دي چې په یوه غونډ له ییز یاپه بله وینا غونډ لمپوهیز(نحوي) چاپیریال کې ځانته بیلا بیله جولیزه څپلواکی ساتلای شي • دساري په ډول له هر راز اوښتې راوښتې سره مخامخیداي شي خوپه ګډه چې کومه یوه یواځینـــې مانا منځ ته راوړي نه شنل کیدونکی مانا بلل کیږي دغسې یوه منځ ته راغلی ګډه مانا کله داسې وي چې دټوکونو (اجزاوو) له بیلا بیلو مانا وو سره څه ناڅه ورته والی اواړیکی لري اودشنلو (تجزیه کیدلو) پروخت یې ګډه مانا کورتــه له منځه نه ځي — دچاخبره یو ځرک هومره یې لالګیږي لکه برخه اخیستل — سربرښهی کیدل مقصد ته رسیدل — وروسته پاتیدل خوله پرخوله کیدل — پرمخ تلل — لاسته راوړل یاراوستل — له منځه وړل ••• اونور •

په دویم ډول ګړنوکې ګډه مانا داسې وي‌چې دبیلا بیلو ټوکونو ماناوې یې ښکارندوي نه شي‌کولای او له ټوټــه ټوټه کیدو سره هر ټوک‌خپلی ګوښې اري مانا ته ورګرځې کټ‌مټ لکه دیوه کیمیایې ترڼګ ټوکونه (دبـــاري په ډول هایدروجن او اکسیجن چې یوې هم ځانته دځپل ترڼګ (( اوبو )) ښکارندوي نه‌شي کولای ) بیلګې یې لکه : غوږ ربول — زړه مړیدل — زړه خوړل زړه ماتیدل — زړه پخیدل — سپینې ښوییدل — ښنتیدل یا غوټه کیدل — پـزي ته رسیدل سترګی رییدل — لاس ترزنې کیناستل — لاس پرسرکیدل — لاس اخیستل اوداسې‌نورې کنایې او مجازي مانا ښندونکې‌ګړنې •

دریم ــ هغه گړنی دي چې دمتلو او بولنو (مقولو) په ډول وي یا په بله وینا یوه غوره وینا وجیزه ډوله یامقوله ډوله وینا وي او یا متلونه وي د اما نا چې کومې کیس ته گوته نیس او هره یوه دگړنا ر په بهرکی دیوه ناشنونکی وی غونډ (لغوي گروپ) په توگه لکه یوه گړنه کاروِل کیږي کټ مټ دشاعرانه ارسال المثل غوندي لکه : دگبرجام نسکور دي ــ پلانی او بیستانی سره نوک اواوري دي ــ پلانی او بیستانی دیوې سوري ماران دي یا دیوې باغچې گلان دي ــ په یوه گل نه پسرلی کیږي ــ داهم په انارو ــ خوند یې باران وري دي ــ دکوهی ختـــه پرکوهی لگی ــ وروري خوري په کړ و حساب ترمنځه ــ یوه بلابلی ته وایې چې بو ــ ښه ښه د ي بدبد دي ــ خپل عمل دلاري مل ــ دجولامنډ ه ترموزي پوري وي ــ لري ځه ــ ژرراځـــــــــه ــ مه کوه پرچا چې رابه شی پرتا ــ لاس چې مات شی دغاړي بارشی یا غاړي ته ورځی ــ دچا پرتوگا بړ تښتیدل (خجالت کیدل) ــ پرپچه سپړیدل او کشمیر لیدل ــ لوړیه لوټه تیره کول ــ اوبه له ورځه تیریدل ــ اوبه په ډانگ بیلول ــ چې په نازلوییږي په زیار زړیږي ۰ (لکه پدې کړي کـــس : چې په ناز لویشی په زیار زړیږي ــ زه په زیار لوي شوم په ناز ژړیـــږم

اوداسې نور ۰ له هسې عادي بولنو او متلونو سره د دغه راز گړ نوتوپیر همدومره دي چــې دلته بولنې او متلونه په جلا او خپلواک ډول د وینا له بهیره بهر ــ دیوې کړي یاشوي وینا د تینگار پخلي او جوتتیا لپاره په خرمه او سرباري (اضافی) ډول نه بلکې په خپله داري وینا یا یوه وینا ییز یوو ن (غونډ لی) دیوه نه جلا کیدونکی توك اوبرخې په توگه کارول کیږي له دې کبله د داسې تضمین شوي یااستخدا مشوي متل یا بولنې ار بنـه تل خوندي نه پاتیږي ۰ (لکه په پاښنی شعرکی) خوپه هرډول دیوې گړنی غوندي دوینا یا غونډلی دننه دمانـــــا او جولی له مخې بونه شنل کیدونکی وی غونډ اوبرخه جوړ وي لکه ځرزي ــ لاس ترزنی کیناست په دي غونډ له کی (لا س ترزنی کیناست) گړنیز غونډ (کل) دي چې دیوې غونډ لی اپښونی یی جوړ کړي دي ۰ نورساري (مثالونه) یې لکه :

